

# افغانستان څنګه تباه شو؟




لیکوال :

جنرال رحمت الله صافي

50

# افغانستان څنگه تباه شو؟



جنرال رحمت الله صافی

## دکتاب پیژندنه :

* - دکتاب نوم : افغانستان څنګه تباه شو؟
* - لیکـــوال : جنرال رحمت الله صافي
* - دچاپ کال : ۱۳۷٤هـ ش / ۱۹۹٦ ع
* - تیـــراژ : ۵ زرګه
* - دچاپ ځای : تاپ پرنټرز - پیښور

**مبا کتابخانه**

**ډمکي نعلبندي قصه خواني پشاور**

# سرلیك

مخ

# سرليك مخ

# بسم الله الرحمن الرحيم

## سریزه

په گران هیواد افغانستان کې ددرومرحلو جهاد او له هغې نه مخکې او وروسته د حالاتو عیني شاهد او برخه لرونکي په صفت خپلو راپاریدلو احساساتو ددې کتاب لیکنې ته مجبور کړم .
دتعلیم او تحصیل په وخت کې دپلار په وسیله څه ناڅه له دولتي جریاناتو سره بلد او اشنا وم
دصاحب منصبۍ ټول عمر مې د محمد داود خان تر کودتاپورې دهغه وخت له ارگ مبارك سره په نژدې تماس کې تیر شوی دی ، چې سبب یې جنرال عبدالولیخان زما قوماندان و . داخبره به غلطه وی که ووایم چې له هر څه نه خبر وم . خو داهم حقیقت دی چې کافي اندازه معلومات راسره وو .
شپږکاله مې له محمد داود خان سره دصدارت په وخت کې نژدی تماس

رلود، دجهاد په وخت کې تر هغې ورځې پورې چې دمسلحانه جهاد
خاتمې په هکله مې دعلماوو فیصله دچهل ستون په بڼ کې ولوسته، په
مختلفو جبهاتو کې قوماندان وم دکونړونو ، ننګرهار ، پکتیا او
پکتیکا په ولایاتو کې زما جهادي هلې ځلې او عملیات او د ورور
ملوی روابط او همکاري دټولو تنظیمو نو قوماندانانو ته ښکاره او
معلومه وه ، ددې حسنه روابطو ستر عامل دملي اسلامي محاذ نظامي
قرارګاه هم وه چې زما دملګري جنرال عبدالرحیم وردګ له خواجوړه
شوې وه .

که زه دتنظیم دنظامي قرارګاه دصاحب منصبانو جهادي قربانۍ ، پاکۍ
او وطن پرستۍ په هکله په تفصیل سره څه ولیکم ، کتاب ترې
اوږیږي. دقوماندانانو سراسري شورئ او دهیواد شمالي ولایاتو ته زما
دوره سفره په دې کتاب کې ګڼ‌شمېر مطالب لري . دکومکونو جلبول او
سیاسي هلې ځلې او په خاصه توګه له امریکا بیانو سره دجهادي
ملاقاتو په هکله په کتاب کې په کافي اندازه بحث شوی دی . په کابل
کې دخرابیو او جنایاتو نندارچي وم ، داسې شیان مې ولیدل ، چې
جنرالۍ په یونیفورم مې خجالت ایسته ، هره صحنه دژړا او دفریاد
.

جنورۍ له پنځلسمې نیټې را پدیخوا دروژې مبارکه میاشت هم
ورسیده حالات راته بدل او ځیرې هم بدلې ښکاري ، ټول په وینو ککړ
لاسونه پاکوي ، خو دمظلوم شهید دوینو داغ نه پاکیږي په چنداولو
کې چې دانسان له سر سره سپي لوبې کولې هغه هم جواب لري .
کابل جان کربلا شوه ، حکمتیار وایي چې قومي شورئ غواړو او له
جګړې نه کرکه کوو . دوستم وایي موږ همیشه دجګړو مخالف وو .
ربدت وایي موږ هیڅکله جګړه نه ده کړې ، بلکه پر موږ تحمیل شوي

ده ، سیاف چې له نجیب نه دقدرت دانتقال دپرامې دډایرکتر په صفت دهیواد دتباهۍ سبب وګرځید . اوس یې تر څنګه په دستر خوان کمونستان دي ، تلاش کوي چې ددریم پروګرام پو ځل بیا ډایرکتر شي.

محسنی وایي چې زه همیشه دسولې سرلاري وم . رباني وایي چې زه ددولت په مزه پوه نشوم ، نوم زما اختیار دمسعود دی . ما دمخالفینو دراکښونو له لاسه یو ول وخت ترمځکې لاندې تیر کړ ، له وحدت نه خلاص نه وم، چې دوستم راته بلا شو که محددې په حدای وسپارم ، نو حکمتیار سره به څه وکړم ،طالبان مې سکتې وو راته غم شول مسنبری وایي چې نه زر لرم ، نه زور، خو په دې سپین زیرتوب کې باعزته مصروفیت او مشغولا هم غنیمت دی خو سوال دادی چې کابل جان څه شو ؟ اولس چیرې دی ولې او دچا له لاسه ؟

نن سبا په پاکستان کې دافغاني مهاجرو حالات په سترګو ګورم ، دروسیې ، ایران او هندوستان دمهاجرو په رقتباره ژوند خبر یم ، په پاکستان کې کونډې له یتیمانو سره ډله ډله ګرځي سوال کوي ، ډوډۍ غواړي .

طالبان چې دهیواد او هیواد والو دنجات غورځنګ دی، تر اوسه لا سیاست ته ځان مجبورنه ګڼي، خو کله که مجبورشول، هغه به ناوخته وي . ما غوږ واره ورته په جلې توګه یاده کړې ده چې دکابل دراوزه په یوازې او یوازې په سیاست خلاصیږي . په هر حال راځئ چې دکتاب سریزه په دالاندې جملو ختم او یو ځای لاسونه د پاک خدای(ج) حضورته پورته کړو او ووایو چې:

یا الله هغه چاچې پر دې شریف او نجیب قوم هر څه کړي دي ، نه یې په هغوی غوږ غوږ چنده وکړې خدایه دشهیدانو پاکه خاوره له ناپاکو نه پاکه کړې .

پاکه خدایه دې آواره اومظلوم ملت ته دانسان په څیرو بلاړونه نجات ورکړې . یاالله(ج) ددرې خپلې کونډې او یتیمان دافغانانو په شان سوالګر کړې ، قادر او توانا خدایه وطن مو بیا وطن کړې ، چې له وطنوالو سره خپل وطن ته ولاړ شو .

# افغانستان څرنګه او ولې دشوروي اتحاد په لاس کې ولويد

افغانستان څرنګه او ولې دشورويانو په لاس کې ولويد . په عمومي توګه تاريخي جريانات ناګهاني او تصادفي نه وي ، موجبهء اسباب او مساعدشرايط پيداشي چې دهغو په نتيجه کې تغييرات منځ ته راځي.
دروسانو وړاندې دافغانانو په زړونو کې له پخوا نه ذاتي کينه او نفرت موجودوو . افغانانو دروسانو دظلمونو او وحشي ګريو داستانونه چې وي دافغانستان په شمال او يا په آسيايي مسلمانو جمهوريتونو کړي وو دهمغه وخت مهاجرينو نه اوريدلي وو . روسانو په نړيواله سطحه په بې خدايي او الحاد شهرت درلود دوی دخور او مور په نه پيژندلو ، دواده او نکاح په نه کولو ، دخوګانو په خوراك معرفي شوي وو . په همدې ملحوظ له دوی سره دافغانانو اولسی تعلقات نه وو . په افغانستان کې دروی سفارت کارکوونکي ډير محدود وو له شپږو څخه نه زياتيدل .
دوی سفارت په زوږ ښار کې دشاه دوشمشيره ولی ته مخامخ موقعيت

درلود شپه او ورځ به ددوی دسفارت دروازه‌لەدننه خوانه تړلې وه . دوی ته دخطر په خاطر ورځې دگشت اجازه نه وه . او نه یې د وتلو جرئت درلود . یوازې دشپې به یې خپل سفارتي کارونه کول . دمکتب هلکانو او بایسکل سوارانو به له لرې ددوی کړکۍ ویشتلې او شیشې یې په غولکه ویشتلې .

له نورو عربی هیوادو سره ددې دپاره چې دوی هم اهل کتاب دی کومه کینه او بدبینې نه وه . یوازې انگریزانو ته یې دپخوانی تجاوز په خاطر په بد نظر کتل او دوی به یې دپیرنگیانو په نامه یادول . کله چې پلار په زوی په غصه شو نو هغه ته به یې دپیرنگي زوی وایه . په دې نه پوهیږم چې افغانانو ته انگلیسان ولې ډیر هوښیار ښکاریدل ، داځکه چې څوك به په کلی کې ډیر چالاك او هوښیار وو خلکو به ویل چې فلانی نامي دانگریزانو دلاس اوبه څښلي دي .

د ۱۹۵۳ کال په اخر کې ریچارد نکسن دامریکي دجمهوررئیس معاون کابل ته راغی زه ډیر ځلمی وم دده په امنیتی گروپ کې انتخاب شوم ، په دې دعوت کې ده ته دشاه شهید شرق ته دکوتل یك لنگه په شاوخوا کې دعسکري پیاده کنډك تطبیقات اجرا شول . په هغه وخت کې دافغانسان په اردو کې دترکانو له خوا امریکایی تکتیك تدریس او تطبیق کیده . ده دافغانستان دوخت له حکومت نه دهندوکش په جنوبي سیمه کې دامریکایی نظامي بیس اجازت وغوښت څو دشوروي په مخ کې او دمنځني ختیځ ترمنځ دنه کمربند پروگرام عملي شي . خو دغه مطالبه له شوروي سره دمشترك لوی سرحد د درلودلو له امله اوهم دافغانستان دبیطرفی سیاست ته په پاملرنه رد شوه .

دده له تگ نه څه موده وروسته جنرال ایز نهاور دامریکی جمهور رئیس دشپږو هلیکوپترو دامنیت او باډي گارډ لږقطعې سره کابل ته

راغلل او په حضوري چمن کې گوز شول . زه بیا هم وظیفه داروم . دگارد قطعه او هلیکوپټرې په حضوری چمن کې پاته شول او مشر میلمه ځی ته ولاړ چې دلنډ او مختصر ملاقات نه وروسته پاکستان ته روان شو . ده هم عین تقاضا کړې وه او په عین شکل ورته جواب ورکړ شو . دریچارد نکسن له خولې نه لویه آوازه شوه چې وی ویل افغانانو ته کمك او مرسته کول دوخت او دپیسو ضیاع ده .

په هغه وخت کې امریکاییانو په ایران او پاکستان کې نظامی بیسونه درلودل او دنفوذخاوندان وو .

لږه موده وروسته ددوی په تحریك ، حتی هدایت ، افغانستان دایران او پاکستان دخوا بلاك ایږ شو . دغه دوه لارې چې موږ ته یې دژوندانه دشاه رگ اهمیت درلود قطع شوې زموږ تازه میوو بوی وکړ او هندوستان چې زموږ دمیوو دصدور دپاره اصلي او حیاتي بازارو لاره ورته بنده شوه دغلې دورود امکانات نه وو په اولس کې پیسې هم نه وې ځکه چې تازه او وچه میوه پرځای پاته وه .

په همدې مجبوریت کې دشورویانو ترانسپورتي طیارې راغلې او دطیارو په ذریعه څه ناڅه میوه شوروي اتحاد ته صادره شوه . له همدې ورځې نه دشورویانو سره زموږ تجارتی تهذاب کیښودل شو او دتجارتي اموالو واردات او صادرات شروع شول . دشورویانو دتجارتي نمایندگانو په څنگ کې یوه دوسیه تجارتي او بله یې دکي جي بي وه .

له پاکستان سره مناسبات خراب شول او په سرحداتو کې دپاکستاني پوځ غیر عادي حرکات په ډاگه لیدل کیدل .

چې دمجبوریت له مخې او دسرحداتو دتقویې په خاطر له مرکز نه په یو سلو شل عسکری شورلټ لاریو کې قطعاتو دلته بند په لار دجلال آباد په لوری حرکت وکړ چې شپیته لارۍ په لته بند کې پاته او شپیته

۲ ساعته ورسته جلال اباد ته ورسیدي .
همدي مجبوریت په خاطر ناخواسته شورویانو ته لاس اوږد شو او وسله
ریداري شوه دوسلي په رسیدو سره نظامی متخصصین راغلل چي
هغوی هر یو دوه وظیفي درلودلي او یوې خوا دوسلي متخصص
نصبدار دبلي خوا دکي جي بي مامور وو دوسلو په تغیر محاربوي
اکتیك طبعاً تغیر کوی ، په همدي خاطر دتاکتیکي زده کړي او دمهمو
سلو دزده کړي په خاطر افغاني منصبداران او محصلین شوروی ته
لاړل ، هغه څه چي ځینو افغانانو په جنت کي غوښتل په شوروي کي
یمانه وو . مخصوصا ځلمیانو کي داتوان نه و چي دشوریانو اصلي
یره ووینې او دهغوی په اصلي ژوند پوه شي ، اکثریت یې په ظاهر
ري مست او گمراه شول .

له بده مرغه افغانان ډیر ژر داحسان مدیون کیږي او چیرته چي ولاړ
ي متمایل او گرویده شي . په همدي وسیله نظامي روابط هم تاسیس
زیات شول .

صنعتي انکشاف په هکله دغربي هیوادونو دقرضي شرایط ډیر سخت
سود زیات او میعاد یې لږ وو . زیاتې پیسې به ددوی دانجنیرانو
صارف شوې ، ډیري پیسې به ددوی په کورونو ، دسپرلۍ په موټرو ،
آب بازۍ په حوضونو دنوکرانو او اشپزانو په تنخواگانو ولگیدې . وارد
وی صناعتي مواد به ډیره موده وروسته په گرانه کرایه او قیمت
ورسیدل . دروسانو دقرضي شرایط ډیر اسانه وو ، سود یې لږ و میعاد
ي زیات، او دانجنیرانو مصارف دافغانانو له سویې نه اوچت نه وو ،
رداتي صنعتي مواد به ډیر ژر راورسید . دقرار دادونو په داوطلبی
ي به له هره لحاظه روسانو په گټه وو په همدې خاطر صنعتي روابط او
گ راتگ هم شروع شو .

افغانستان او مخصوصاً په کابل کې هم دکمونستی الحاد نیالګي کیښوول شول اوبیو خپنی خاتنانن ، لکه کارمل ورته ډیر ژرپه ثمر ورسدل . دشوروریانو دنږدیوالي هدف او مقصد دکمونستی ( ژهر دچاکلیټو په پوس کې ) خوږو نظریاتو او ایډیالوژیو خپرول وو چې په دې لاره کې به یې ډیر مصارف هم کول . او په غریبو هیوادو کې موثر وو . دغربیانو کومه ایډیالوژي نه وه دهغوی هدف محضی ګټه او دلنډې مودې اقتصادی استفاده وه . چې مخصوصا افغانستان ورته اقتصادی دلچسپي نه درلودله په همدې مناسبت دغربیانو ډیر لریوالی دشوروریانو دډیر نږدیوالي سبب شو . ددوارو سترو طاقتونو حرص او تلاش په منځنی ختیز کې دحاکمیت تامینول وو . ددې ترڅنګه دشوروریانو یو بل هدف او مقصد دهند دتودو اوبو سمندر ته ځان رسول او دامریکائیانو ترتیب شوی شنه کمر بند په مقابله کې له هندوستان سره دچین نه دسره کمربند ترتیبول وو ، موږ ته دپنځو سو نه په سلو کې زیات تاوان تر اوسه پورې دغربو دتیلو نه رسیدلي دي .( دملی منافعو په ګټه کې مو اش ونه لیده ، خو دود یې وړانده کړو ) په هغه زمانه کې په عمومي توګه دمنځنی ختیز په هیوادونو کې دازادۍ مبارزې شروع شوې وې او دغه مودې لپاره چې په هغه اندازه غربیان په شاروان وو ، شوروریانو په شدت سره پر مخ تګ کاوه . په نړیواله سطحه دغربیانو پر ضد نفرت او دشوریانو لورته دلچسپي پیدا شوې وه او داسې احساس پیدا شوی و چې شوروریان دغریبو هیوادونو ملګري او طرفدار دی . کمونستي شعارونه دورځې مود او فیشن ګرځیدلي وو ، په غربي هیوادو کې کارګري احزابو او کمونستانو په شدت سره پرمختګ کاوه . دناپیلو هیوادونو نړیوال غورځنګ په خپل ذات کې د شوروریانو په ګټه ؤ . دنهرو ، محمد داود خان ، جمال

عبدالناصر ، دوکتور سوکارنو ، نمیری ، احمد بن بلا او داسې نورو د شورویانودخروسچف او بولگانین تله درنه کړه .

دلیونید بریژنف په راتگ کمونستي نړیوال سیاست بدل شو او زیات نه زیات په زور او قوت متکي شو .

دکي جي بي له خوا دامریکا دویتنام دجگړې پر ضد ترتیب شوي ، او پلان شوي تظاهرات په بن ، لندن ، پاریس ، روم ، نیویارك ، واشنگتن او همداسې نورو ښارونو کې دامریکاییانو جنگي مورال له منځه یووړ .

په بیله روس کې ( ددوینا ) په نامه عسکرې ډیر ستر عملیات چې درې لکه عسکرو گډون کړی و او په شپږ سوه کیلومتره جبهه کی اجرا شو او نړیوال اعتراضونه او تشویش یې راپیدا کړ دعملیاتو په پای کې لیونید بریژنیف دزړونه زیاتو مارشالانو ، جنرالانو ، او عالیرتبه منصبدارانو ته په خطاب کې وویل چې تراوسه دشوروي اردو وظیفه دشوروي اتحاد مدافعه وه ، خو اوس ستاسو وظیفه دغربي استعمار نه دنړۍ دهیوادونو آزادول دي . زه به دهیوادپه نورو برخو کې بودجه کمه کړم خو ستاسو بودجه به لازیاتیږي .

غربي نظام زوړ شو ، دمنځه ولاړاو ځی نړیوال ستاسو دځوانې ایدیالوژۍ او نظام انتظار باسي .

دپورتنی لیکنې مطلب دادی چې دشوروي په لاس کې دافغانستان لویدل ناڅاپه عمل او تصادف نه و . دنړیوالو نقشه او پروگرام و ، موږ هم غفلت کړی دی خو بیا هم زموږ گاونډیان ، غربیان، او مخصوصاً امریکاییانو هم په کې مسولیت درلود .

# پاچا او پاچايي

دجنرال پتن له مقرریدو سره سم دمارشال رومل ټول تلاش داو چې دهغه بیوګرافي پیداکړي ، تر څو دهغې له مطالعې نه وروسته خپل نظامی حرکات عیار کړي. کله چې دعراق قواوې کویټ ته ننوتې مخصوصاً امریکاییان ډیر وارخطاوو او ډیر کوشش یې کاوه ، چې جنرال صدام حسین وپیژني څو کله چې یې خپلې قواوې دایران له خاورې نه لرې کړې دامریکاییانو ډار او خوف کم شو . مطلب مې دادی چې دیو مملکت دزعیم او قاید شخصیت ډیر اهمیت لري . په غربی ازاده نړۍ کې دواړه خواوې تلاش کوي چې دمخالف رقیب ګوند دمشر دشخصیت خلاوې پیدا او خپلو وګړوته یې رسوا کړي . زما دغه بحث هم دبادشاه او بادشاهۍ په نامه دوه برخې لري . .

باچا ( اعلیحضرت محمد ظاهر شاه ):

هره لیکنه دوه مخه هنداره ده ، په یو مخ کې موضوع او په بل مخ

کي دلیکوال شخصیت ښکاري . دا دواړه یو پر بل موثر وي دلیکونکي دخپل شخصیت تعارف دهغه لیکنه تشکیلوي . خبرې مفتې انتقاد اسان ، خو عمل سخت وی وايي سیل بین دننني منځ ولي . زما دخور زوی دتګاو د لومړني ښوونځي دخلورم ټولګي ناکام ، په ماشومالي کي ټول وخت په محمد داودخان او بهټو انتقادونه کول . نقد باید عادت او مرض نه وي ، پر هغه چا چې نقد کوئ دهغه دکړو وړو دنقد صلاحیت باید ولريئ .

په لیکنه کي باید اخلاص ، بیطرفي او تناسب موجود وي او په معیارونو متکي وي . دخلکو او عامه نظرته په لیکنه کي داولیت حق ورکړل شي ، داهم باید پوه وي چې هر انسان ټول مثبت او ټول منفي نشي کیدلای .

په همدې لحاظ دشخص دښو او بدو قضاوت اول دهغه په ذات نفس بیا له نورو سره په مقایسه کیدلای شي . احساسات تعصب ، شخصي غرض ، قهر او غصه ، دلیکني ارزش او کیفیت له منځه بیایي .

دمحمد داود خان له راتګ سره سم داعلیحضرت پاته قات شوه ، او نوم یې له یاده ووت . تابه ویل چې هغه اصلاً وجود نه درلود ، په اولس ، منطقه ، او نړیواله سطحه له یاده ووت . خو له هماغی ورځي نه رادیخوا ، دکمونستانو او تنظیمی رهبرانو دوېرې لنډې مودې دګبیني میاشت ختمه شوه او په هماغه اندازه چې ددوی نومونه بدیدل ، داعلیحضرت نوم ښه کیده ، په اولس ، منطقه او نړیواله سطحه څومره چې دوی مړه او دخاورو لاندې شول په هماغه اندازه اعلیحضرت ژوندی او له مځکي راروت ، دهرچا خپل عمل قاضی شو رهبران : قوماندان ، او خارجیان ټول ورته روان دي کله چې محمد داود خان او پرچمیان راغلل محمد داود خان ولس ته په خطاب کي وویل : ترکله به

دميزبانو په شان په سينه ځي ، دعقاب په شان پرواز وکړئ . په نتيجه کې يې د هيواددتباهۍ پروازتهداب دعقاب په پنجو کې کيښود . په اولېچيغې او نارې دجمهوريت وې بيا دجمبورۍ شوې .

دکارمل دپرولتاري ( روټي ، کپړا اورمکان ) چيغې داسې ښکاريدې چې گوندې دنړۍ وزې به ماړه کړي ، خو اوس به خپله ددوستم دلامبو دحوض ده باشي دی .

تره کی او امين يو روح دوه تنه و چې دبالښت لاندې خفك شو ، دپيشرفت ټول معيارونه يې يوازې فرامين وو.

دتنظيمونو رهبران چې زما دسنگرياران دې ويل به يې اسلام سرحد نه لري خو اوس يې کورونه او کوڅې سرحد کړې، کورپه کور گمرك دی او محصول غواړي .

شعارونه او موعظې او تبليغ چې يې را په ياد شي ما ويل خدايه خلفای راشدين دی خو اوس يې څه وکړل ، څه کوي او لابه څه وکړي .؟

څلويښت کاله زوی پلار او ورور له ورور سره گوزاره نه کوی ، داعليحضرت محمد ظاهر شاه په دوره کې وروري وه ، مينه وه ، او محبت و ، ديوه افغان پوزه بې ځايه وينې نه شوه . په امريکا او اروپا کې تبعيض شته ، په افغاني جامعه کې نه و ، بلکه اوس له بده مرغه راپيدا شو ، قومي او قبايلي خلاوې په خيښيو او خپلويو ډکې شوې وې .

څلويښت کاله افغانان دجهاني او منطقه يي جگړونه مصؤن وو . داسلامي ممالکو په مقايسه افغاني اداره بې رشوته اوبې فساده وه ، څلويښت کاله دافغانانو دکورونو دروازې خلاصې وې کورونو قفل او زنځير نه درلود . په اوړي کې به دنيم نه زيات افغانان دخپلو کورونو سره په باغونو او پاليزونو کې ژوند کاوه . دپيسو اميانۍ املانه ټولي

، لوښي ، خوينديٍ ، مور ، ځواني او زړي به د ميړو له رمو سره رواني دتورخم نه هرات او يا دپکتيا نه به ميمني او مزار شريف ته په نيمو شپو روان وو .

چاله چا سره كار نه درلود . په هر كلي او جومات كي به ورسره مرسته كيدله او په درنه سترګه به ورته كتل كيدل .

دخلويښتو كالو افغاني دود او دستور نړيوال شهرت لري ، چي افغانان پري افتخار كوي او زموږ امتياز ثابتوي .

دمحمد داود خان له كودتا نه را په دي خوا دنړي استخباراتي دستګاوو ، لكه سي اى اى ، كي جي بي ، اى اس اى ، ام اى سكس ، موساد ، ساواك ، اخواني ، وهابي ، هندي ، فرانسوي ، جرمني او همداسي نورو تر اوسه پوري په مليونو ډالر مصرف كړل خو اعليحضرت دخلويښت كالو په دوره كي څلوريښت زره ډالره پيدا نه كړل ، هر چا چي هر څه ويلي ، اوس خاموش او خجالت دي .

څنګه يي نوم المتوكل على الله وو نو هيڅكله يي په توپ او ټوپك اتكانه وه ، ده به هميشه ويل چي ماخداى ساتي او په افغانانو كي دشمن نه لرم دى دلسوز او مهربان و ، له قتلونو او كشتارنه يي نفرت درلود .

## پاچهي :

داعليحضرت دخلويښتو كالو سلطنت په دري دورو ويشل كيږي. اوله دوره دهيواد دمحترمو كسانو نه علاوه دپاچاهي داولي دوري دهمكارى ټيم : دپادشاه ترونه ، سردار محمدهاشم خان ، صدراعظم ، مارشال شاه وليخان او سپه سالار شاه محمود خان وو . څني افغانان پر دغه دوره انتقاد كوي او وايي چي سردار محمد هاشم خان ظالم او ستم ګر وو . زه دى نظر تر ديد كوم او له هغه نه دفاع كوم . هغه افغانان چي په اوسني

حالت کې په افغانستان کې دموکراسي په فکر کې دی او خپل فکر او نظر عملي بولي ؛ نو دهغوی نظر دسردار محمد هاشم خان په هکله تاییدوم . او که دافکر کوي چې په افغانستان کې دملوك الطوايفی خاتمه او دمرکزي نظام ټينگيدل يوازې او بوازې دبا انظباطه او با دسپلينه اداري دلارې کيدای شي نو سردار محمد هاشم خان ظالم او مستبد نه و ، په هماغه وخت کې هم خونړی انقلاب ، وحشت او بربريت تير شوی و ، دافغانستان داستقلال گټونکی او کفری نظام پرځای اسلامي نظام راوستونکی بادشاه أعليحضرت امان الله خان پر ځای دسقاو زوی قدرت ترلاسه کړی وپه چندولو کې دمرحوم استاد برات علی خان په کورکې به دده مشغولیت و ، چې په خپل وخت کې مادبچه سقاو داخبنې دبي بې سنگري دورور سره کمکونه او مرستې کړې دي . او ټولې حقيقي کيسې او داستانونه راته معلوم دي . څه شی ته چې اوس غنیمت وایی په هغه وخت کې ورته ولجه کیده دسقاوی دوخت ولجه شوی سرکاری لوی تجير او ډير قيمتي افتابه او لگن او همداسې نورشيان زموږ په خپل کور کې وو ، په مزار ، هرات او لوگر او جلال اباد کې پادشاهی گانې اعلان شوې وې په دغسې حالاتو کې دمرکزي نظام داستقرار لپاره معقول اسلامي او انساني عدالت په چوکاټ کې استبداد او دسپلين ته اشد ضرورت وی چې دبدانو نه نيکان په امان وي ، داكار په خپل وخت کې شوی دی همدا شان خارجي مداخلې وې او روسي او انگليسي رقابت او جاگير داری هوس او احساس موجود و .

دويمه دوره :

دپاچاهی په دوهمه دوره کې بيا هم دهيواد محترمو مصاحبينو او مشاورينو او وطن پرسته اشخاصو نه علاوه داعليحضرت دهمکاری ټيم

دکاکا زامن سردار محمد داود خان او دهغه ورور سردار محمد نعیم خان وو . څرنګه چې په نړیواله سطحه صنعتي جنبش پیدا شو ، په افغانستان کې هم داقتصادي توان په اندازه کارونه وشوه ، اعلیحضرت په اوضاوع مسلط و ، او دبې ځایه ، بې لزومه شدت مخنیوی ده په خپله کاوه . ډیر کارونه دولس له خوښې سره سم روان وو او هر کار په خپله اندازه کیده .

دمحیط په تقاضا په مناسبه اندازه انضباط او دسپلین و ، په دې دوره کې ددې نه زیات تفصیل ته ضرورت نه وینم .

دریمه دوره یا دموکراسی :

ماته ددې دورې تشریح او تفصیل مشکل او جنجالي ښکاري ، ځکه له یوې خوا د انکار ناپذیره حقیقت دی ، چې دوخت او زمان دایجاباتو مطابق په هیواد کې سیاسي بدلون راغی او دولس له ارادې سره سم سیاسي قدرت د شاهي کورنۍ نه خلکو ته انتقال شو او په تاریخ کې داشان خانداني قرباني نه ده ورکړې شوې ، او داسې جامع مترقي او دیموکراتیك اساسي قانون حتی دنړۍ په ډیرو هیوادو کې نه و .

دتشکیلاتو مطابق تعینات به دومره په احتیاط او دقت کیدل چې دوست او دښمن طرفدار او مخالف ته به انتقاد او شکایت مجال نه و ، دمعنوی ژوند ارزښت په مادي ژوند ډیر غالب شوی و ، اداره پاکه وه ، رشوت خور اورشوت ورکوونکي دواړو خجالت ویسته او په جامعه کې سرکوزي وه . دمحمد داود خان دکودتا قهرمانانو نه تر اوسه پورې چې دجناب رباني دخلافته دوره ده داعلیحضرت دوخت دحکومت اداري اعضا او همکارانو ته محتاج شول . اما له بده مرغه داسې یو غلط فکر تولید شوی و چې ګوندي ګډوډۍ ته دموکراسي وایی . دتظاهراتو هدف او مقصد معلوم نه و ، داساسي قانون تر څنګه نور متمم قوانین نه

وو او يا نه تطبيق کيدل .

حقيقت دادي چې دکتاتوري نظام ددموکراسۍ له نظام نه ډير ساده او اسانه وي . جامعه په خوله کې بندي کړه دروازه قفله او تکړه پيره دار پرې ودراوه . اما په دموکراسۍ کې هر څه آزاد ، پريږده په جلا جلا ډول دهرشي کنترول او مراقبت مشکل وي .

که څه هم داحزابو قانون نافذ نه و بيا هم ملي خاين او داسلام دښمن دکې جي بي وفادار غړی دمحمد داود خان جاسوس ببرك کارمل او دهغه ملګرو په ټوله بې شرمۍ په داخل کې دمحمد داود خان په اطمينان او په خارج کې دليونيد بريژنف په اطمينان دبې مفهومه او بې مقصده تظاهراتو په وسيله ګډوډي راوستله . ددې پرځای چې زموږ ملي احزاب او اسلامي احزاب چې زموږ دجامعې اساس او بنياد تشکيلوي علني او بر الاوې پټ او خاموش وو . خلقيانو او شعله يانو ته هم پرچميانو جرآت ورکړ

که موږ ددموکراسۍ په چوکاټ کې ، لکه دپخوا په شان جمعيت العلمای اسلام درلودلی بيا به داسې الحادي جراتونه چانه کول . که محمد داود خان په دې پوه وای چې داساسي قانون نه دتلف په مورد کې زما او ديو بل افغان فرق نشته داجرآت يې نه شو کولای . دشوري دبعضې وکيلانو او دقمار خانې دجيزګرانو ډير فرق نه و . دسي ، ای ، ای همکار دمشر اعتمادي وروړ خو د افغانستان يو تاريخی ملی زعيم شهيد ميوندوال دمقابلې په ګناه پرې بدنامه شو . دافغانستان په يو وزير حتی صدراعظم کې دا جرات نه و چې دجناب اعتمادي دګرځندوی له رئيس نه ديو نيم لکو ډالرو تپوس وکړي .

دامريکې ټکساس دايالت زما امريکايي ملګري او دوست چې ډير سرمايه دار او په خپله دنړۍ مشهوره رنچ او ښکار ګاه لري ، ديوه

مارکو پولو غرځه دښکار داجازې لپاره پنځوس زره ډالره اعتمادي ته ورکړي وو، خو هغه درې مارکو پولوغرځان ویشتې وو او یولك ډالر یې جناب اعتمادي ته نور ورکړل .

دامریکې نظامي اتشه کرنل هوری دخجالت نه همکاري ونه کړه مګر داعتمادي صاحب دډارنه افغان وزیر خاموش پاتې شو او غرځان تکساس ته ورسیدل . او دهغوی پوستکي ډك شوي دي او دهغه امریکایي په کور کې ولاړ دي په دې خبره کې زما مطلب دچا دراز افشا کول او یا تحقیر نه دی . مطلب دادی ، چې صلاحیتونه معلوم نه وو ، مداخلې وې او دامر او قوماندی جرات له چاسره نه و . دهیواد دملي اشخاصو سره ، لکه شهید محمد موسی شفیق سره دهمکاری پرځای مقابله او جبهه ګیري وه او عمومي وضعیت شړیدلی ښکاریده .

درې تنو پرچمیانو چې دمظاهرې په وخت کې په عسکري قطعاتو هجوم راوړ چې وسله واخلې دریشخور داومې فرقې قوماندان عبدالشکور خان عظیمي دقطعاتو له خوا مړشول ، دجنرال عبدالولیخان پر ضد کمپاین ، دمحمد داود خان له خوا پلان شو او دکارملي له خوا تطبیق شو . لنډه داچې دافغانستان دتباهۍ تهداب ظاهراً کورني مخالفت او دځلمیانو ناسنجیده غالمغالونو او بې مفهومه تظاهراتو کیښود .

حتی هغه ځلمیان چې ډیر ملهبي او داسلامي ګروپونو اعضاوو ، ددریځ مړو شریو پرچمیانو د سالګرو کتونۀ په مظاهرو کې دری په اوږه ځارل ، یعنې له کمونستانو سره په یوه لیکه کې ولاړوو ، لکه په ایران کې چې دشاهي نظام پرضد توده بې کمونستان او ملهبیان په یوه لیکه کې ولاړ وو .

زه یقین لرم چې اوس هرڅوك په خپلو تیرو اعمالو پښیمانه دی . ټولو

خپل امتحان ورکړ او په ترتیب سره ناکام شول . اعلیحضرت امان الله خان او اعلیحضرت محمد ظاهرشاه خان دوینو دتویدو دمخنیوي په خاطر له خپل قدرت او ځان نه تیر شول خو اوس یې دځانونو په خاطر هیواد تباه کړ . زه اوس هم بعضې لیکنې گورم چې دهغه وخت تبعیض او ظلمونو په هکله لیکي چې خدای ناخواسته یا څه نه ویني او یا بیځایه عقدو ددوی په عالي شخصیتونو سیوری اچولی دی . شاید بعضې کسان زما دلیکنې په هکله فکر وکړي چې شاید زه دنظام له نعمتوو برخوردار وم او یا مې څه ارتباط درلود . زما قوم په نظام کې تکلیف لیدلی و ، زما پلار زندانونه لیدلی وو ، ما زندانونه ولیدل او حتی په حربي ښوونځي کې دصافي والي په خاطر یو کال بندي وم ، خو دخدای (ج) نوم حق دی دیو افغان او مسلمان په حیث باید قضاوت عادلانه وی . دهغه وخت افغانستان له ټولې غربیې سره سره دگاونډیو، او دنړۍ ټولو مسلمانو هیوادونو نه دهره لحاظه په مراتبو ښه و او که نه نو څوك دې حتی یو مثال ورکړي . داحزابو قانون :

له ما سره یو سوال دی چې دهغې حل په خپله نه لرم داحزابو قانون جوړ و ، خو بند شوی و او نافذ نه و . داولې ؟

چا دانظر ورکړی و ؟ دادوستي وه که دښمنې ؟

زما په عقیده دخدای (ج) دښمن ، دبادشاه دښمن ، ددین او دنیا دښمن ، دهیواد دښمن ، دانسانیت دښمن یوازې او یوازې حزب دموکراتیك خلك ( کمونست ) و ، نور ټول احزاب ، لکه اسلامي حزبونه ، ملي حزبونه دحزب دموکراتیك دښمنان او دخدای (ج) د بادشاه ، هیواد ، او دانسانیت دوستان وو . دولت داحزابو دقانون له بندیدو سره ، دخپلو دوستانو لاسونه تړلي وو او دښمن یې ازاده پریښې وو . دغه څه اسرار وو او ولې ؟ ولی داتوریت وو او ملحدین په ټوله

بیحیایی فعاله وو ، نظام ولې له خپل ځان سره دښمني وکړه ؟
حیران یم چې دانظام ولې په دې اندازه میان خالی وخوت . ددویمې نړۍ دسترې جګړې په شروع کې دبریتانیا صدراعظم ونستن چرچل اعلان وکړ چې له هټلر سره په بحر ، مځکه ، او هوا کې جګړه کوو . خونه تسلیمیږو .
دهمغې شپې داعلان په سهار کې کله چې دکورنه راروت دده ټولې کورنۍ ( دده زوی او لوڼو ) عسکري یونیفورم اغوستی و . الیزابت دبریتانیا ملکه چې په هغه وخت کې ځوانه نجلۍ وه ، په عسکري یونیفورم له کورنه بهر شوه دهماغه قربانیو په نتیجه کې په دې نژدې وختونو کې دچرچل شخصي یاداشتونه او کاغذونه تقریبا په دیرش ملیونه پونډه خرڅ شول .
که څه هم زه خبروم چې امریکا بعضو اروپاییانو ، اعرابو او ګاونډیانو نه غوښتل چې اعلیحضرت دصحنې پر مخ راشي او داځکه چې دوی پوه وو چې اعلیحضرت محمد ظاهر شاه څوك دخپلو اغراضو لپاره نشي استعمالولی ، خپل هیواد تباهۍ ته نه ورکوی دعزت او ابرو په حدود کې سیاسي حل ته غاړه زدي .
عمومي سیاست داو چې دافغانانو آخرینه قطره وینه هم باید بیرحمانه تویه شي او دوی باید خپلو شومو اهدافو ته ورسیږی . بیا هم زما په عقیده که څوك وغواړي مبارزه وکړي دهغې مخه هیڅوك نشي نیولای. هر چیرې او په هره لاره مبارزه کیدلای شي .له بده مرغه په دې لوی خاندان کې هیچا ونه کړه . له خبرو عملی حرکت ونه لیدل شو . دوطن پرستۍ او دقربانی جذبه په کې مړه وه . ټولو اقوامو او قبایلو حتی افغاني هندوانو په دې کې برخه واخیسته . دنړۍ دټولو وګړو غږ پورته شو . حتی دامریکایی او اروپایي یهودیانو ځوانو دجهاد په

صحنو کې افغانانو ته وژړل او خپله همدردي يې ښکاره کړه خو دوي دقوم په سطحه ورك شول .

دوطن پرسته افغانانو پيسې قرض کړې او روم ته ولاړل چې اعليحضرت تشويق کړي . اعليحضرت نن په سبا اکثريت افغانان په انتظار پريښودل چې په پای کې دې کار دگټې نه تاوان ډير ورساوه . ماورته ځو ځوځله په ډير صراحت سره وويل چې بايد له صحنې ته ووزي او يا سم په صحنه کې ننوزي . پادرده او وطن پرسته پښتانه اول دهمدې خاندان له لاسه ، بيا دکمونستانو له لاسه او په جهاد کې داخوانيانو او وهابيانو له لاسه او بيا وروسته دستميانو او شعله يانو له لاسه طعنه خواره او در په در وو .

پښتانه دهغه سياست ( چې پښتون بايد دومره خود سر او آزاده نه وي چې دپادشاهۍ بوی يې په پوزه ولګيږي ، او نه بايد دومره وړکول شي چې دنورو اقليتونو دمخنيوی نه عاجزه وي ) قربان شول . ملي کادرونه ونه روزل شول . دارتقا او پيشرفت معيارونه دهيواد په گټه نه وو .

دجنرالانو په کمربندکې دتفنګچې پرځای دبوټ پاکی دستمال وو . په همدې خاطر سلوتی تربيه شول او هر چاته يی سلوت وکړ . اعليحضرت په دې سياست چې افغانان په بالاخره مجبور شي او ماته به مراجعه وکړي او يا به هيواد تباه او برباد کړي چې په دواړو حالاتو کې به زما تيزه درنه شي .

زما په عقيده داسې سياست څوك دخپل فاميل او اولاد سره نه چلوي. افغانان تر اوسه دوی ته بابا وايی . ټول مشکلات ورته معلوم وو . چې دوسې يې پوره نه وو ، نو بل څوك به يې مخ ته کړی وای او په ډاګه به يې خپل معاذير اولس ته ويلي وو او دصحنې نه به لرې شوی وای .

# داوُدخان او کودتا

کله چې دټولي قوماندان وم دکنډك د قوماندان سردار عبدالولي خان په امر زما دټولي يو بلوك عسكر دسردار محمد داود خان ( دوخت صدراعظم ) او دهغه دورور سرادر محمد نعيم خان په کورنو کې وظيفه دار وو . مادشپږو کالونه زياته موده دسرادر محمد داود خان له کورني ژوند سرله نژدې تماس درلود .

ډير شريف ، پاك نفسه او ډير ساده ژوند ښتن ، ډير وطن پرست انسان و دکار شوقي او په ترقۍ او پيشرفت مين انسان و . دده ښه تفريح دکارونو ليدل وو . په همدغو ملحوظاتو زما ورسره ډيره شخصي علاقه وه او ښه ورته احترام مې کاوه ، په رښتيا چې دکودتا نه مخکې ژوند يې ديادونې وړ دی . خدای دی يې وبخښي او شهادت دې يې قبول شي. څه موده دمخه ديو ملګرى په کور کې ميلمه وم او دافغانستان په هکله سياسي خبرې او بحث شروع شو ، ماپه خپل نوبت سره مخصوصاً دسرادر محمد داود خان يادونه وکړه او کوشش مې وکړ چې دهغه ملګرى خبرې چې دمحمد داود خان په هکله يې افراطی منفي نظر درلود ، خبرې وکړم او هغه قانع کړم او خبرې رد کړم .

دکور ښتن چې زما لحاظ يې ډير و راته وويل : ددې لپاره چې زما ميلمه يې ښه په داوي چې خاموش اوسم . او که نه حقيقت خو داسې نه دی چې ته وايې ، ماورته په جواب کې وويل چې دهر چانظر دهغه خپل نظر دی .

محمد داود خان خو لا پرېږده چې زما په هکله هم وي او حقيقت ولرې زه خو شحاليږم ، خو دنظر بيان دوباند دشخصيت ښکارندوی دی ، بايد وينا په اخلاص اويې طرفه وي خو دغرضي ونه لري . دی راته په

خندا شو او وی ویل چې زه نه د محمد داود خان خپلوان یم نه تر بور.

موږ له داود خان سره له ډیرې نژدې نه همکاري درلودله او دهغه په توافق مو ډیرې پروژې جوړې کړې دي . او سه مو پیژانده خو زه به دهغه په هکله څو ډیرې ساده خبرې وکړم ، چې دنوربحث او دلایلو حاجت نه وي او هر چاته معلومه وي .

که زه تاته لیونی جنرال ووایم نو حتماً له ماسره جګړه کوې او خفه کیږې . داځکه چې لیونی دصفت نوم نه ، بلکه دانسان لپاره تحقیر دی. دی په افغانستان کې په لیوني سردار مشهور و . محمد داود خان په نړیواله سطحه په سور سردار مشهور و او دپرچمیانو سرلښکرو دپرچمیانو داخلي قوت محمد داود خان او خارجي لیوند بریژنیف و . مهمه خبره داده چې ده ولې کودتا وکړه دده هدف او دکودتا مقصد څه و؟

کودتا هغه څوك کوي چې دهغه ارزوګانې او ایډیالوژی یې په سیاسي مبارزه دعملي کیدو امکان ونه لري یا رژیم دکودتا کوونکې په نظر خاین وي اویا عمومي بې امني او ناقراري وي ، یا دکتاتوري نظام په دموکراتیك نظام بدل کړي . که رژیم صادق و ، که خاین پاك و که فاسد ، امنیت و که بې امنیتي او ناقراري ، خو په افغانستان کې درژیم اصلي محور او څرخوونکی سردار محمد هاشم خان اوبیا سردار محمد داود خان و .

په دې آخرو څو کلونو کې دخاندان نه بهر څو کسان راغلل چې هغه هم ددوی له لاسه په آرامه نه وو . نو دده د کودتا ضرورت څه و . حقیقت خو دادی چې په افغانانو ددموکراسۍ دخالي نوم روا داره نه و . او دتش په نامه دموکراسۍ ډیره کوچنۍ رڼایې خاموشه کړه او دهیواد دتباهۍ بنیاد یې کیښود . چې ژوندی و جمهوري خواه نه و چې دقبر

په سرشو جمهوريخواه شو ؟ سپه سالار شاه محمود خان غازي دهيواد تاريخې افتخار و ده ته يې دپلار حيثيت درلوده هغه يې بې عزته کړ شاه خانم يا ملکه دملت معنوی مورره ، ټول عمر دوی په يو کور کې ژوند کاوه ، په کومو افغاني اخلاقو او کومو اسلامي ارشاداتو دخپل ناموس او داولس دمور حريم ته ده حراميان کمونستان وليږل او هغه يې نظربنده او زنداني کړه . دهغې څه له لاسه پوره وو او ولې ؟

مارشال شاه وليخان دکابل فاتح مجاهد ستر قوماندان دملت معنوي پلار دهيواد دتاريخ افتخار زوړ بودا او ناروغه دپښې معيوب او په لاس کې امسا ده بندي او زنداني کړ دهغه څه له لاسه پوره وو او ولې ؟

ثمرسراج داعليحضرت امان الله خان خور دمارشال شاه وليخان ميرمن سپين سرې او مريضه ولې ده زنداني کړه دهغې څه له لاسه پوره وو ؟

حقيقت دادی چې هيواد دکورني مخالف او بيا دلحاظ او مراعت قربان شو . بيا زه تاسو افغانانو ته حيران يم چې له يوې خوا وايي چې دهيواد مشکلات يې اعليحضرت محمد ظاهر شاه نه حل کيږی له بلې خوا دمحمد داود خان ددفاع وکيلان شی . دايو حقيقت دی چې اعليحضرت او محمد داود خان يو بل سره ردوي . که اعليحضرت مثبت وی داود خان خامخا منفی دی او که داود خان مثبت وي نو بيا اعليحضرت منفی دی .

دواړه په يو وخت کې مثبت کيدلای نشي . بله خبره داده چې وايی زنده باد محمد داود خان مگر مرده باد پرچميان، چې داوير ظلم اولويه گناه ده که داود خان زنده باد وي نو بيا پرچميان هم زنده باد .

دافغانستان شاهي نظام کوم اداري مرکز نه و ، بلکه روحاني حيثيت يې درلود پاچا ته داداري زعيم پرځای روحاني احترام کيده او دعزت القاب يې روحاني وو ، په همدې مناسبت ارگ ته به افغانانو مبارك

وایه .

هغه وخت چې دافغانانو دعزت او ابرو دروازه ماته شوه ، دارگ مبارک نه دکوهستانیو بانډه جوړه شوه چې هر څوك پرې تیریږی او وخت تیروي ، نو له هماغې لحظې نه دافغانستان دتباهۍ تهداب کیښودل شو.

## دسردار محمد داود خان لنډه پیژندنه

دسردار محمد داود خان دژوند اساس رواني ناروغتیا ، عقده او انتقام ، خاصه روزنه او کورني امتیازات تشکیلوی ، په کوچنیواله کې سردار محمد داود خان دتعلیم په وخت کې په فرانسه کې د رواني ناروغۍ ترتداوۍ لاندې و .

کله چې دده پلار دیو افغان له خوا په جرمني کې په شهادت ورسید دغې خبرې ده ته شوك ورکړ او عقده یې واخیسته او هرسرکش او قوي او متین انسان ورته قاتل ښکاریده او ټول عمر دسرکشانو پرضد دحملې او انتقام په سوچ کې و او خپل ډیر ښه ښه ملکري او دټول عمر دوستان چې دده له خوا سرشارۍ ته رسیدلي وو څوك یې پرې مړه کړل او څوك یې په زندانو نو کې پوده کړل . دځوانۍ روزنه یې دخپل تره سردار محمد هاشم خان نه چې په انظباط او دسپلین یې شهرت درلود واخستله . او داتلسو کلونو په عمر کې د لړو تعلیماتو نه وروسته جنرال شو .

داعلیحضرت شهید له لورسره یې واده دی ډیر نازدانه کړ ، په سرعت لوړو مقاماتو ته ورسید . دډیرې اندکې نارضایتۍ په صورت کې به یې په ډیره غوسه کار او وظیفه پریښوده ، خو ددی پرځای چې سرزنش او مجازات شي یو مقام به پورته ولاړ . دده دقهر او عصبانیت نتیجه دبازپرس پرځای ارزښ او امتیاز و . تر آخره پورې د[illegible] هاشم

خان دمدرسې دتعلمياتو پير و .

**دکودتا موجبه :**

دمحمد ادودخان دکودتا موجبه اسباب پورته ليکل شوی دی چې درواني مريضۍ دلرلو په نسبت قدرت ته له رسيدلو نه پرته نور څه نه وو بل کوم هدف او خاصه فلسفه يې نه درلودله . محمد داود خان دقدرت تږی او دانتقام مجنون و . دقدرت په تقسيم عقيده مندنه و ، يو ځل يې دخپل کاکا سپه سالار غازي شاه محمود خان سره پنجې نرمې کړې او هغه يې دصحنې نه لرې کړ ، بل وار يې دتره دزوی دسردار عبدالولی خان سره پنجه ورکړه ، سردار عبدالوليخان ددموکراسۍ نظام په راتلو کې سهم درلود . خو متاسفانه چې مار يې مړنه ، بلکه لنډی کړ چې داولې ؟ که په محمد داودخان ته چا ويل چې دبخارا فتح دې مبارك شه ده به ويل چې ثمر قند څنګه شو ؟ په همدی سبب نژدې و چې بې موجبه دوه درې ځله افغانستان په مصيبت او جګړو کې واچوي ، دمحمد داود دکودتا پرځاي کاشکې اعلحضرت په خپله جمهوري نظام راوستی وای .

**دکودتا احضارات :**

محمد داود خان په ظاهر کې راست کار ، راست ګو ، او ډير شډل افغان ښکاريده ، چې هغه وخت کې دغسې کسان دافغانانو خوښيدل . زما شاګرد او بيا ضابط داخله وزير فيض محمد خان له وينا سره سم چې ددهمزنك په کوټه قفلۍ کې يې ماته وکړه ، دامريکې ريوالور تمانچې ورته دليبيا له خوا تهيه او اکمال شوې وې چې دمحمد داود خان دکور نه توزيع شوې .

يعنې ددوی په کودتاکې دوه بهرنيو ملکونو شوروي او ليبيا لاس درلود او داپې هم وويل چې دشهيد محمد موسی شفيق داسلاميزشن

پروگرام کودتا ته سرعت ورکړ .

سردار محمد داود خان دخپل تره محمد هاشم خان له مدرسې نه دجاسوسانو دتربیې درس ډیر موفقانه زده کړی و . چې په حکومت او دولت دارۍ کې ډیر مهم کار دی . لکه ببرك کارمل دمحمودي لپاره اویا جګړن محمد کریم خان دعبدالملك خان لپاره او همداسې نور .

ددفاع په وزارت کې لوی درستیز ډگر جنرال غلام فاروق خان په اردو کې داستخباراتو رئیس تورنجنرال قادر خان په ملکي کې دضبط احوالاتو رئیس تورنجنرال محمد اسماعیل خان په ارگ کې دخارجه چارو رئیس تورنجنرال عبدالله جان روکی ( داعلیحضرت باجه ) دمحمد داود خان داطلاعاتی شبکو مشران وو .

په عمومي توگه دده دکودتا پلانونه په چهلتن کې احضاریدل . پورتنیو شبکو له کودتا او دهغی له پلانونو سره څه کارنه درلود ، ددوی اساسي وظیفه کونترانتلجنس یا اطلاعاتی مقابله وه . کله چې به دسردار محمد داود خان دکودتا آوازه خپره شوه پورتنیو شبکو به دغه آوازه دسردار عبدالولیخان دکودتا په نامه بدله کړه . په ارگ کې سردار عبدالولیخان یوازې پاته و ټولو به داویل چې قدرت دده په لاس کې دی ، کودتا دی کوی ، تش دداود خان نوم بدوي چې دغه ټول فعالیت به جنرال عبدالله خان روکي کاوه . دوه ځله ماته دمحمد قاسم خان یاور په ذریعه دشهزاده احمد شاه خان له خوا ډیرشدید اخطارونه راکړل شوي وو یعنې ماته هم شك من و ، شهزاده گان ، سردارتیمورشاه خان او همداسې نور دجنرال عبدالولیخان پر ضد ، دمحمد داود خان ددوستۍ په ټیم کې داخل وو . دکودتا داجرا دپلانونو په راس کې یوازې پرچمیان وو . حتی جنرال عبدالکریم خان مستغني دکودتا پلانونونه په تفرعاتو خبر نه وو. دجنرال عبدالولیخان په خپله کورنۍ کې ستره گناه او قصور دخاندان

پرځای ولس ته توجه وه . هغه کوشش کاوه چې له ولس سره په رابطه کې وي او دکورنۍ وړه کړۍ ماته کړي . جنرال عبدالله خان روکي چې کله په شوروی کې نظامي اتاشه و دکي جي بي له خوا بلك ميل شوی و. او دسرکشۍ توان يې نه درلود . تفصيل ته ضرورت نشته .

دمحمد داود خان پرچم ته پښتنو منصبدارانو جلب او کشش جنرال مرز وزير او وروسته جنرال نوازخان وزير له خوا کيده ، مخصوصاً د خوشحال خان دليسې فارغانو دسر حد بعضو مشرانو په واسطه دببرك او محمد داود خان سره مينه زياته وه ، فيض محمد خان دداخله وزير زما په غيابت کې چې دکوماندو قطعاتو ته اووه کسه په پيسو او دچوکۍ او مقام په وعدو اخيستي وو . په دې هکله چې ما ولې هغه وخت اقدام ونه کړ دولس مل ( مجاهد ولس ) په اخبار کې مې څو کاله دمخه مفصل جواب ورکړی دی زه امر منونکی وم نه امر ورکوونکی . پر محمد داود خان باندې زما حمله به زما نام نيکي وه او که زما او زما دټول قوم تباهي او بربادي .؟

دکودتا په هکله دانګليسانو دسکاټلند يار دنه يو عالي رتبه منصبدار راغلی و او په پغمان کې اوسيده . له ډېرې مطالعې نه وروسته يې ويل چې افغانستان ته تر اوسه دبهر او محيط نه دنظام دړنګولو خطر نژدې نه ښکاري هر څه چې وي هغه به په ارګ کې وي . اعليحضرت دمعالجې لپاره خارج ته تللی او جنرال عبدالولي خان يې دسفر ملګری و.

زموږ په احوال جنرال عبدالوليخان کابل ته راغی او زه چې څو ورځې دمخه انګلستان نه بيرته راغی وم بيا په اوضاع حاکم وم او دبری په نامه محرم پلان سره مې ځان عيا رکړ ، هغه راپورچې زما دکشف امر ډګروال محمد قاسم خان تجرابي ماته راکړی و هغه ما له خپلو نورو

معلوماتو سره سردار عبدالولیخان ته ورکړ . جنرال شیر محمد خان دزرهدارو قوماندان ددفاع وزارت ته راپور ورکړ . دګروال نظر محمد خان نورستاني داستخباراتو معاون راپور ورکړ چې بیا دقدیر نورستاني په بلا اخته شو . ستر جنرال خان محمد خان ته دوه تیلفوني راپوروونه ورکړ شوي وو.

په هر حال جنرال عبدا لولیخان چې زما مشر وروړ په اردو کې دټول عمر یواینی امر او او وطن پرسته افغان یا اهمال وکړ ، یا یې جرئت نه و یا پرې ډیر ناوخته و اویا یې داعلیحضرت فرمان له هر څه نه پورته ګاڼه او دامر منتظر و . ددفاع له وزیر نه دا انتظار نه کیده او نه یې صلاحیت و . که څه هم دغه تحولات له نړیوال پروګرام سره سم وو . خو لحاظ او اهمال وشو . ددې پرځای چې محمد داود خان د هیواد نه قربان شي هیواد دمحمد داود خان نه قربان شو .

تجربو وښوده چې باید قانون دهرڅه نه پورته وي نه شخص ، دقانون په چوکاټ کې باید دهرچا قانوني صلاحیت او مسوولیت واضح او معلوم وی او هرڅوك باید په جرئت سره خپله وظیفه اجرا کړي له قانون نه باید هیڅوك استثنا نه وي .

دکودتا جریان :

دکوماندو قواوو یو جزوتام دپولیسو منتظره قطعه او دزرهدارو بل جزوتام عمومی او اصلي قواوې فلج کړې وې کوماندو قطعاتو زما په نامه کودتا شروع کړې وه چې زه په یو مخصوصه قرارګاه کې دجنرال عبدالولیخان سره مصروف یم او دعمومي کودتا په راس کې عبدالولیخان دی . تر هغې چې زه یې دقدیر نورستاني په کور کې زنداني پیدا کړم او اکثر یې تعجب پاته وو .

دشپې دوه نیمې بجې وې ، له میرویس میدان نه دجګړن حلیم خان

وردك له ميلمستيا نه راغلى او ويده وم دبلاك ترمخي غالمغال راوينى
کړم . زما دکور ( ۳۲ اپارتمان ۱۸ بلاك ) ترمخي له عسکري نفر
خدمتانو علاوه بعضې همسايه گان هم راټول شوي وو. دوی وویل چې
څو کسه غله دمنصبدارانو په لباسونو کې راغلي وو او ستاسوتپوس يې
کاوۍ، خو کله چې موږ پرې غال مغال وکړ لاړل او تبنتيدل . چې
دهليز ته راووتم دتيلفون جانت بکس په مځکه پروت و . او زما
تيلفون کار نه کاوه . دبلاك ترڅنگه کودکستان ته ولاړم دهغوی
تيلفون هم غير فعال و له تيلفون نه زما مقصدد او چې ژر ترژره له
جنرال عبدالوليخان سره رابطه پيدا کړم مگر امکانات پيدا نشول . زما
موټر دبالاحصار په قوماندانۍ کې پاته و . بله چاره نه وه زه دوکتور
کاميار او اختر سياسي د دوکتور کاميار په فولکس واگون کې
بالاحصار ته ولاړو . د بالاحصار دشاه شهيدولور شرقي دروازه کې
طراب خان تورن ولاړو له مانه يې ډير خواهش وکړ چې کورته ولاړ شه
دلته مه اوسه چې خطر دی او اوس خبره ختمه ده .
دملگرو په خوښه بيرته راغلو ، موټر مې چې بايد درسم گذشت دمشق
او تمرين لپاره قطعاتو سره حضوري چمن ته راغلی وای رامعلوم نه شو ،
بيره مې اصلاح کړې وه دريشي مې کړې وه تمانچه يې رانه کور کې
واخيسته او وی ويل: چې اوس دغه په درد نه خوري ، په دې وخت کې
دجنرال عبدلوليخان په کور دماشيندارو ډزې کيدلې . او درسام دمرميو
خط بنکاريده ، هغه گروپ چې په اول کې زما کورته راغلی و دهغه
گروپ مشر علومی پيژندوال و چې زما د ترور وظيفه يې ورکړې وه .
دخلکو دوينځو او غال مغال په وجه موفق نه شو ، دلاهوری دروازې
او شاه شهيد دچن کنج ته راغلم دسرې مياشتې دتعمير ترڅنگه
دبالاحصار جالي دار ديوار ته ورسيدم ، په دې وخت کې د ټانگ نه يو

خوردضابط راکوزشو او پرمایې دپه په شې ډزې وکړې . زما دوم تلاش چې قوماندانی ته رسیدل وو ناکامه شو . ددوی په اشاره ټانك ته پورته شوم او دټانك قله یې کوزه کړه په ټانك کې دننه دعسکر نه سهوا ډزه ( فیر ) وشوه خوبنه وو ژوبل نه شو .

کله چې ټانك دمحمود خان پله ته ورسید او دشش درك دڅهار راهی لور ته راتاو شو نو ایله پوه شوم چې خبره څه ده ، څو دقیقې وروسته ټانك دسرادر محمد داود خان دکور تر مخې ودرید . دټانك قله یې پورته کړه او ددوی په اشاره مې سر راویست ټانك دمحمد داود خان له کور سره ولاړو څو دقیقې وروسته سرادر تیمور شاه خان داعلیحضرت اخښی او دمحمد داود خان خینښ راووړت . زه یې ولیدم او بیرته دننه ولاړ بیا دوه درې دقیقې وروسته راووړت او ټانك ته یې دحرکت اشاره وکړه . ټانك ولاړ او دقدیر نورستاني دکور ترمخې ودرید .

دقدیر دکور دپورتني منزل په یوه خوا کې مارشال شاه ولیخان ، شهزاده احمد شاه خان ، ثمر سراج صاحبه او په اول منزل کې چې سالون و ، څه ملګري راغلي وو او څه نور راغله . په دې خونه کې سردار عبدالولیخان ، شهید محمد موسی شفیق ، خان محمد خان وزیر دفاع، عبدالحکیم خان کتهوازی ، ( غبدالله جان روکی ) محض داطلاع لپاره. جنرال محمد عثمان خان ، جنرال جبار خان او یو تعداد نوروو . جنرال کتهوازي وویل چې داسې راروان وې ماویل چې کودتا تا کړې ده . زه په کړکۍ کې ناست وم ، دبهرپیره دار په ولاړه ریده و او فیروشو مرمۍ زما دسر تر شاولګیده دشیشې دماتولو سره مرمۍ کزلك وکړ . په سالون کی دوه پیره داران وو دهغوی په غاړو نوی کلاشینکوفونه وو . زه پوهیدم چې هغوی په استعمال حاکمیت نه لري . سردار عبدالولیخان ته مې اشاره ورسوله چې په یوه پیره داردې دی حمله وکړي او بل نه به زه

کلاشینکوف واخلم او ځانونه به ازاد کړو ، هغه ماته اشاره وکړه ، چې ومې لیده دسالون ترمخې لوی جرتازه کندل شوی و او دټانك میل موږ ته متوجه و .

داددې لپاره چې که لږ حرکت وشي نوموږبه مړه کړي او په جرکې به مو واچوي .

دشپې جگړن عبدالوکیل خان صافی راغی او زموږ دټولو دمسلك او رتبو علایم یې دسینو او وږو نه ټول کړل او موږ یې په قطار کې دصدارت عظمی ماڼۍ ته راوستو . یو تعداد ملکري چې په بل ځای کې ټول شوي وو هغوی یې هم راوستل او ټول یې دصدارت دماڼۍ په پورتني منزل کې په کوټو تقسیم کړو ، په اول منزل کې عسکري قطعه یعنې محافظین وو . وزیر دفاع خان محمد خان دکاغذ او دقلم درخواست وکړ چې محمد داود خان ته تسلیمي ورکړي او دهمکارۍ او خدمت لپاره خپل چمتوالی وښیی . شفیق چې سر په روجایی کې پیچلی او پروت و په ډیر عصبانیت راپورته شو او وی ویل چې وزیر صاحب تر اوسه لا ستا دسر قوماندان احوال معلوم نه دی حالات ټول مجهول دي معلومه نه ده چې څه کیږي او ته خو باید په هیڅ صورت تسلیمي ورنه کړې .

مو ظفو منصبداراو پر ما او شهزاده احمد شاه خان څه اشتباه کړې وه چې سخت یې تهدید کړو او خبره تر رهبر پورې ورسیده او لیکلی اخطار راغی . څو ورځې وروسته غلام حیدر خان رسولي او بعضې نور کسان راغلل او ثمر سراج ته یې وویل چې تاسو د رهبر په امر کولای شئ چې کور ته ولاړ شئ . ثمر سراج په خپل ځای کوټه کې ودریده او ډیره سخته عصبانی او په غصه وه درهبر په نامه یې ډیرې پوچې سنکنځلې وکړې او وي ویل ( مه گاو مری را دیده ام ای خو هنوز گوساله مری

است ، آن زن افغانم که در مشکلات ازشوهرش دور وجدا نمیشود .)

دصدارت په مانېي کې موشپې تېې وې هره شپه ملګري رخصتيدل . په اتلسمه شپه موږ دولس پاته کسان يې په تورو موټرو کې دهمزنګ ته بوتلو . زموږ اته ملګري يې دقلعه کرنيل په حويليو کې دوه دوه کسان تقسيم کړل او موږ څلور کسان شفيق ، جنرال عبدالوليخان ، جنرال کټوازی ، او زه يې دقلعه جديد په نامه کوټه قلفيو کې تقسيم کړو . زموږ د درو ازې قفل يو او دشفيق دوه وو . ( دې عمل ته دکابل دسرچوك په اصطلاح پوك ګري او اصلی واي ) هدف دروحي فشار توليد و . زما فکر شفيق ته خراب و ، مافکر کاوه چې هغه ملکي دي شايد دتکاليفو تحمل ونه لري خو په پای کې زموږ دټولو نه تکړه وخوت ، دده ددروازې په ټك ټك څوك پوه نشو او دشپږو مياشتو وروسته دقران مجيد دنولسو پارو قاري شو .

نيمه شپه وه جګړن عبدالاحدخان دپوليسو قوماندان زما کوټې ته راغی يو ورق اخبار او پنسل يې راکړل . او وی ويل که په حاشيه کې يې څه وصيت خپلې کورنۍ ته ليکې ، ځکه چې سبا شايد تاسو دکرنيل په قلعه کې څلور واړه چار ماري شئ ، مامې زوی ته دومره ولیکل چې پر ماخجالت مه باسه ، زه حقوقي او جنايي مسووليت نه لرم. او په ضمن کې مې توصيه وکړه چې ژوند او تعليماتو ته متوجه اوسه . معلومداره ، شپه مو په رنړو سترګو سبا کړه داوداسه لپاره مې دروازه ونه ټکوله لمونځ مو هم قضا شو خو څه درك معلوم نشو . ورځ تيره شوه او په بله شپه راغی دير خوشحاله و او وی ويل چې محمد کريم خان مستغني قران مجيد محمد داود خان ته وړګ و او تاسو له مرګ نه خلاص شوئ خو ټوله کميټه دمحمد کريم خان مستغني پر ضد شوه ، څه موده وروسته بيا په خاصو بهانو يې سردار عبدالوليخان

دارگ دکوټې باغچې په تشناب کې بندي کړ چې دادهغه دمرګ دپاره بل شان دسیسه وه . څو قریب مرګ شو محمد خان قندهاري قوماندان کشف کړه او داود خان تهډې خبر ورکړ له هغې وروسته بیا دقاید په هدایت سردار سلطان محمود غازي خهر اخیست .

جګړن عبدالحد خان هغه قوماندان و چې وروسته بیا په لغمان کې ووژل شو . زموږ په دوره کې تر ټولو نه زیات تکلیف جنرال کټوازي ته ورسیده .

زما دلیکنی مقصد سیاسي جریان دی . ددې نه وروسته تفصیل ورکول چې شخصی کیزي لازم نه بولم .

سردار محمد داود خان ماته مفکوروي کمونست نه ښکاریده ځکه چې اصولا شهزاده ګي او سرمایه داري ( دافغانستان په سطحه ) دا اجازه نه ورکوی ، یوازې دکمونستي اداري عام او تام او تر مرګه پورې دقدرت سیستم ، دلارو ګردونه دماشینونو غره هار ، انقلابی مارشونه او رنګونه یې دیر خوښیدل .

دسردار محمد داود خان سقوط :

وایی چې زده یې کړې په طفلی هیر به یې نه کړې په پیری . محمد داود خان پخواني خوبونه لیدل خو دې فکر کې نه و چې دسترنج دتختې حریف یې لیونید بریژنیف دی .

دده دقتل او دده پر ضد دبلې کودتا پلان دده دکودتا نه یو کال تر مخه پلان ګزاري شوی و . په خواجه مسافر کې دجنرال محمد عثمان خان کور کې چې ژوندي دي ، دوکتور محمد حسن شرق ویلی وو چې موږ ته هدایت شوی دی چې دمحمد داود خان په مشری سیاسی قدرت تر لاسه کړو ، څو چې په هیواد کې دمحمد داود خان دنفوذ په واسطه دګډوډۍ مخه ونیوله شی . او کله چې ارامه ارامي شوه بیا به

محمد داود خان له منځه بیایو . دادجنرال محمود عثمان خان دخپلې خولې اقرار دی چې مستغني ته یې هم ویلي وو . دحوض په غاړه دودکا بوتل په لاس دنیشې په حال کې دجنرال محمد عثمان خان نه یې خواهش کړی و چې ته دډیرو ځلمیانو او ځوانو منصبدارانو سره شناخت او معرفت لرې او چې کله وخت راشي موږ سره به همکاري کوې چې پرچم قوی شي ، په کور کې دشدید نظارت لاندې وم ، خو ځان مې مستغني ته ورساوه او دغه راپور مې لیکلی ورکړ چې داود خان خبر کړئ ، هغه خپله دوسیه رالوڅه کړه ، نولس ورقې دهریولپاره یوه ورقه ددوی ناپاکه بیوګرافي او خاینه اعمال وو . زما راپور یې هم ضمیمه کړ. دوه هفتې وروسته مستغني وغوښتلم ، سترګې یې له اوښکو ډکې وې اویو کوچنی کاغذ یې راوسود . محمد داود خان لیکلي وو:
جناب محمد کریم خان مستغنی ، اگر پاس سی وپنج سال دوستی نمی بود با این نوشته هایت عکس العمل شدید میکردم ( جنرال مستغنی او جنرال عثمانخان ژوندي شاهدان دي .)

مستغني په افسوس سره وویل وروره افغانستان دلاسه ولاړ . په هر حال دده دسقوط عملي ډرامه په لاندې ډول وه : دمحمد داود خان په کودتا کې بعضو منصبدارانو دوه ترفیع وکړې او دبعضو چې دسجل وخت پوره وو درې ترفیع وکړې ، خوردضابطان ، ضابطان شول ، پرچمي قهرمانان ډیرو لوړو مقاماتو ته ورسیدل او دلویو قطعاتو قوماندانان شول ، وروسته بیا مستغني دوی ورو ورو راکوز کړل او غیر فعاله ځایونو ته یې ورکړل ، کله چې رسولي دمستغني پرځای وزیر دفاع شو بیایی برادران قهرمان گفته په فعاله اولوړو قطعاتو مقرر کړل.
له بلې خوا یو تعداد مخصوصاً پښتانه منصبداران حیران او متحقیر پاته شول . امران دمادونانو تر لاس لاندې شول نالایق دلایق مشر شو ،

حتی کورونو ته دغه جنجال او خجالت ورسید . دډیرو منصبدارانو احساسات دعقدو نه ډك شوه . دغې ډلې دامین سره لاره ونیوه او خلقیان شول . په دوه ساعته بې خوبۍ شنې پټې په سرو بدلو لو لاره دوی هم پیدا کړه . له یوه خوا دخلقیانو ډله اماده شوه او له بلې خوا دمحمد داود خان قهرمانانو دا فکر وکړ چې مستغنی او رسولی نوې دی کارونه ټول رهبر کړي ، ددوی هم زړونه له عقدی نه ډك شول . په دې وخت کې دلیونید بریژنیف په هدایت دخلقیانو او پرچمیانو داتحاد په هکله فعالیت شروع شو .

ډگروال عبدالروف خان تکابي ماته راغی او وی ویل چې پرچم او خلق یو ځای شول او د دولت په دستگاه کې تشنج رفع شو . دی هم جلب شوی و او ځان یې امین ته ډیر نژدی باله او امین صاحب امین صاحب به یې ډیروویل له همدې خبرنه وروسته ما دمملکت نه دوتو تر تیبات تکمیل کړل او راووتم .

# له هیواد نه فرار

تردی عنوان لاندی له ماسره خوزې او دلچسپه قصې شته چې ګټه وري او ازمونده دی خونه غوارم چې مسایل د شخصیاتو لور ته ولاړشي.

حقیقت خو دادی چې دوطن نه فرار دژوند نه فرار دی او دژوند نه فرار مرگ دی ، چې دزمانی جبرېې پیښوي . انساني عقل او منطق ته غیر قابل باور او قبول اما ټکي په ټکي حقیقت خبرې دي ، چې زما دزندان په ټوله موده کې دملگرو دوستانو او خپلوانو له جملې نه دخفیه پولیسو دتعقیب له وارنه یوازې حاجی محمد حسین خان دچندول حاجي بادام دولتزی دوارو تجار او رحیم غمزده ( استاذ ) زما کورته راغلی او زما دکورنۍ تپوس او احوال یې اخستیو چې نظر بندوم مور مې وفات شوه دوزیر اکبر خان روغتون نه یې جنازه زما دکور اتلسم بلاك خواته راوړه خو ماته دلیدلو اجازه نه وه ، ورروسته دکور دنظر

بندي ته دخپل زوی سره له تګاب نه دشاه صاحب زیارت سکین ته روان وم چې دچاریکارو دپولیسو قوماندان او دتګاب ولسوال درسولي خینښ او خپلوان په روسي جیپ کې داله سای دغرو لمنو ته راپسې راغلل.

هرات کې مې په هوټل کې یوه شپه وه دیو ټولي په اندازه پولیسو چهارراهی ګاني نیولي وې ، چې قندهار ته راغلم دیده بدتره وه ، دکابل نه هرات او بیرته کابل زما کوره پورې ضبط احوالاتو دریاست عمومي مدیر دقادري په سرویس کې راسره و .

کله به مابنام فرخي سینما ته ولاړم ، په ښنګ کې به راته خفیه پولیس ناست و ، بیرته تر مکرورېانه پورې والګاټکسي به راپسې وه . یوه ورځ مې ورته وویل چې بهتره ده چې ما ځانه سره په موټر کې واخلې چې دابه هم زما لپاره راحت وی او هم به ستاسو وظیفه ښه اجرا شوې وي . ډریور ( خفیه پولیس ) په ډیر خجالت سره وویل : عفوه غواړم مجبوریم خپله وظیفه اجرا کوم.

محمد یونس جان دپولیسو منصبدار چې دوستي او رابطه لرو ، زما دبلاك باشنده پر ماوظیفه دار و ، او له اکثرو شیانو نه به خبریدم . په اوه لسم بلا کې زما کورته مخامخ یې پرچمي پولیس منصبدار ته ځای ورکړی و چې ماتعقیب کړي . درې ځله یې داخله وزارت ته په دې بهانه چې ته په خپل ځان کنترول نه لرې او پرواګند او منفي تبلیغات کوې یوتلم ډیر بیځایه او بې ضرورته تعقیب لاندې وم .

جنرال محمد اسماعیل خان دضبط احوالاتو رئیس ته مې وویل : چې که دیو سړي سره دذروي راکټو تښې هم وي نو اعظمي پنځه کسان دهغه دمخنیوې لپاره لا ډیر دي او تاسو دپولیسو ټولی راپسې ګرځوی

زما ددې ازادۍ مفهوم او معني څه ؟ خواهش مې وکړ چې محمد

داود خان ته روایه چې دومره مې په تنګ او په تکلیف کړي چې ۸
ستاسو نه مې زړه بد شي اومه دومره فشار راکوئ چې دهیواد نه زړه
بدی شم .

زما دوسلو شخصی کلکسیون او نور ډیر سامان غلام حیدر خان رسولی اخستی وو ، خو کله چې مې تپوس وکړ وی ویل چې هغه حورهبر ضبط کړل . بیا مې وویل چې څه ناڅه قیمت یې راکړئ وی ویل دی خبروپسې مه ګرځه ، دپښتو متل یې راته تیر کړ ( چې سر دې دردنه کوي داغ پرې مه ږده ) یعنې زما دسامان غوښتنه زما دسر داغ و .

جناب محمد کریم خان ناظر په لاس مې محمد داود خان ته په یو لیك کې دوه شیان لیکلی وو . یو داچې دزندانې صحی امورات باید همیشه په نظر کې وي او توجه ورته وشي ، څکه چې دخلاصي په صورت کې دمعیوبی په خاطر دهغه ټوله کورنی به ټول عمر په تکلیف وي او زموږ څنې ملکري په همدې مشکلاتو مواجه وو .

بله داچې جایداد او دارایی دیوه سړی نه وي په هغې کې ټوله کورنی شریکه اوسي او حق لری ، چې دهغې ضبطول له ظلم نه پورته او زیاتی دی . معاش نه،تقاعد نه ، دنوری غریبی اجازه نه داژوند به څرنګه تیریږی ؟

په هر حال کله چې خبر شوم چې خلق او پرچم سره متحد شول نو قرار مې په فرار بهتر وګاڼه په چاریکارو کې مې اخښی دپنځلسو زرو روپیو په مقابل کې ساخته ګي پاسپورت جوړ کړ .

په ډیرو بدو لارو مې ځان تهران ته ورساوه او دتهران دزاړه بنارد حاجي ګل محمدي ترکمن په مهمانخانه کې د اوو نورو افغانانو سره په یوه خونه کې دیره شوم . جناب شفیقی صاحب دافغانستان ډیر نامتو خطاط

هم تشریف درلود . زما ډیر لحاظ او عزت یې کاوه ، اروپاته مې دتګ خیال نه و ، دمهات بین المللی شرکت په اعلان مې دروسي ژبې ترجمانی لپاره فورمه ډکه کړه چې اقامه راکړي . په ډیره خوشحالتیا یې څه پیسې پیشکي هم راکړې . څه موده دساواك خفیه پولیسو دمحمد داود او کمونستانو دجاسوس په اشتباه چې ماپه شوروي کې تحصیل کړی و ، درې څلور ورځې بندي کړم تحقیقات یې رانه وکړل ، دکوټې ملګري مې کویټ ته ولاړل او زما زړه داسلامي ملکونو پولیسي تعقیب نه په چاود و . زما دتعلیم دوخت دزوی دمعلمی په مرسته دایران نه انګلستان ته ولاړم .

# جهاد او جهادي قيادت

دپښتو متل دی وایی چې ورورى به کوو خو حساب تر منځه . زما په عقیده دجهاد دخطرزنګ دافغانستان دشاهي نظام د دموکراسی په دوره کې ووهل شو . دامعلومه خبره ده چې زموږ يوه پخوانی کلاسیکه درنه او محترمه جامعه وه چې دسلهاووکلونو راپدیخوا په ملي اسلامي اصولو استواره وه .

نظام محترم دنظام مشر دئورو په مقایسه روحاني شخصیت او ټولنه درنه وه ، که غریب و خوشحاله و ، وروري وه امن او امان و ، بدسري په کلي او قبیله کې ځای نه درلود ، اداره هم قبایلي او ټولنیزه وه .

که نور یوازې ددین په کمربند تړلي او خپل وحدت یې ساته موږ په ملي ، اسلامي کمربندونو بسته وو چې تر هربل هیواده مو ملي وحدت تامین و .

اساسي دموکراتیك قانون راتګ زموږ خاموشې ټولنې ته ټکان ورکړ

او ټول بندونه وشلیدل ددې ترڅنګه ستره اشتباه او غلطي داوه چې په دې فکر او تصور چې ددموکراسۍ نظام اداري سیستم ددکتاتورۍ نظام اداري سیستم نه بسیط او اسانه وی ، خو په حقیقت کې ددموکراسي اداري سیستم تر ټولولو نه سخت او مغلق وي . په دکتاتورۍ کې خوله ترلې او حرکات محدود وي او یو خاص قانون لپاره یوی خاصې اداري او پهره دار ته ضرورت وي ولې په دموکراتیك نظام کې قوانین او مختلفې اداري په کار وي . په دکتاتورۍ کې ټولنه او په دموکراسۍ کې حتی فرد هم اداره غواړي .

دجامعې اقتصادي ، کلتوري ، صنعتي ، زراعتي ، اجتماعي او علمي سویه له قانون سره معکوساً متناسبه وه ، داخزابو دقانون جوړول او بیا یې بندیز هر څه سره وران او ویجاړ کړل ، صلاحیتونه او مسوولیتونه سره ګډ او ورك شول .

له هیواد نه یې دپیازو یې خیشاوی پټی جوړ کړې و او هر راز ګیاه په کې راشنه شوه ، دتظاهراتو آزادي او داحزابو دقانون بندیز په یوه پښه اکسلیټر ته او بله برك ته فشار وو .

دایو حقیقت دی چې یوازې ملي ایډیالوژي ( نشنالیزم ) دهرې جامعې په خپل نفس او ذات کې وجود وي او نورې سیاسي مفکورې او ایډیالوژي ګانې دبهر نه واردوي ، حمایت او تقویه کیږی ، اکثراً ملي خاینان دتظاهراتو رهبران وو ، ملي طاقت خپل دینامیزم له لاسه ورکړی و ، زوړ او نړیدلی و ، زموږ ټولنه فیوډالي او کپیټالستي نه وه نه مو کار ګران وو او نه دهقانان ، ژوند « بخور ونمیر » و ، دافغانیو ملیونران نه وو نه صنعتي وو نه زراعتي ،دافغاني کمونستي مشرانو مبارزه کمونستي ملي ایډیالوژي نه وه ، بلکه دکې جي بي نمایندګان او ایجنټان وو ، کوشش یې کاوه چې دخپلو بادارانو د تاریخي اهدافو

درسیدو لپاره دهغوی اوامر او هدایات تطبیق کړي ، یوه ورځ په کاریز میر کې له پراشوتی پرتاب نه وروسته اعلیحضرت دکابل دښار دمظاهرو پوښتنه وکړه ما په خپل عرض کې شکایت وکړ چې شاگردانو مو داسې پرېښې دي او دښار په منځ کې بې هدفه مظاهرې کوي ، هغوی وویل چې که څه هم واقعاً دغه مرحله خطرناکه ده خو تیریدل یې طبعي او ناگزیر دي صبر او تحمل پکار دی او خدای (ج) دې په خیر تیره کړي ، خلك باید له دې نعمت نه مثبته گټه واخلي .

هغه وخت چې دنظارت لاندې وم دخپل کور اتلسم بلاك ترشا په چمن کې مې گلان ایښودل چې کارمل او اناهیتا راغلل چوکۍ او چای مې ورته راوړل ، دوی نجیب ته منتظر وو ، ماخپل کارته دوام ورکړ ، کارمل له عادت سره سم دروټې ، کېږا. مکان قصې شروع کړې ، ماورته ووې چې که ربښتیا کارمل یې نو داگز او دامیدان .

څه بیل واخله او پټې جوړکړه ، خو ستا هدف په هیواد کې گډوډي ده نه کار.تاټول خلك له کاره ویستل ، ده وویل چې دتظاهراتو په وسله دمحرومې طبقې پوهیدل پکار دي ، ماورته وویل چې تا سو دواړه په خپله دمحرومې طبقې نماینده‌گی نشی کولای ، وروسته مې ورته وویل چې تاسو خارجي کتابونه لوستي دي دافغاني جامعې کتاب هم ولولئ ، کمونستي احزابو ملي ټولنه په ټوله بې حیایی ترسیوري لاندې کړه او اسلامي احزابو علمي اسلامي ډلې او ټولنې ترتاثیر لاندې راوستې .

دکمونستانو او اسلامي احزابو رقابت علني او ښکاره شو ، زما په یاد دي چې زموږ داتلسم بلاك اوسیدونکی حاجی جمعه خان په کور کې دوه ډوله کتابونه (کمونستي او اسلامي حزبي ) موجود وو ، اخښې یې ( یوسفزي ) اسلامي حزبي او زوم یې برنا کمونستي کتابونه راوړي وواو دښه په کور کې دکفر او اسلام جگړه شروع وه .

دمحمد داود خان دکودتا سره سم کله چې کمونستانو سیاسي قدرت ترلاسه کړ اسلامي حزبي ډلو هم په علني مقابلې او شوټ لاس پورې کړ ، په پکتیا کې یې دوزی ولسوالۍ ووهله او څه اندازه وسله یې ترلاسه کړه ، بیایې په لغمان او پنجشیر او همداسې نورو ځایونو کې عملیات وکړل ، دکابل دښار دننه یې هم مخصوص ګروپونه فعال وو دتره کی په راتګ هیواد کې دوه اوازه ( هورا او الله اکبر ) پورته شول.

له یوې خوا کمونستي وحشت ، قتل او غارت او اختناق او له بلې خوا دهرې ورځې په تیریدو سره اسلامي صفونه تقویه کېدل چې دروسانو په راتګ سره ملي اسلامي قیام جوړ شو.

## جهادي قیادت :

په عمومي توګه قیادت دوه قسمه وي یو یې جهادي او بل یې دولتي وي . داویر امکان لري چې دولتي قیادت په عین زمان جهادي قیادت هم شي هغه وخت چې یو هیواد پر بل هیواد یرغل وکړي په هغه صورت کې مدافعه کوونکې هیواد ددولت مقام دجهاد اعلی قوماندانۍ په لاس کې اخلي چې دداسې قیادت نتیجه مثبته وي .

دافغانستان په شان جهاد کې چې دولت خاین او دیرغلګر قواو میږمان شي.جهادي قیادتونه دوخت او زمان دضرورت په خاطر منځته راځي او اکثرا دولتداري زعامت نشي کولای او دجهاد له ختم سره سم له منځه ځي او قدرت دولت ته سپاري . هغه جهادي قیادتونه چې دجهاد له ختم سره ددولتداری دپاره هڅې او تلاش کوي دتاریخ له مطالعې سره سم دکامیابی چانسونه یې لږ وي ، زموږ په جهاد کې ستر مشکل داو چې نظامی قیادتونه ډیر او سیاسي احضارات مونه لرل دنجیب له سقوط سره سم ستره خلا پیدا شوه ، په داسې حالاتو کې دوخت په تیریدو سره

ملوك طوایفان منځته راحئ ، یوازینی چاره یې داده چې غنئ کبان باید واړه کبان وخوري مطلب داچې کم قوتونه له منځه ځي او قوي پاته کیږی او که داکار ونه شي نو افغانستان یې ښه مثال دی ، وایی چې ټک له دوه لاسونه وځي ، زموږ دنظامی چارو څو لاسونه وو څو سیاسي لاس لاتر اوسه نه لرو هر څوك نظامي لاس په سر وهي او ټك ترینه باسي .

# جهاد او جهادي احساسات

جهاد دالله پاك په لاره كې قرباني ته وايي چې احساسات يې دروني وي ، جهادي احساسات په خاصو انګيزو او موجبه اسبابو پيدا شي ، رشد ومومي ، او تبارز وكړي ، په جهاد كې دبا ارزښته مسلمانانو څوږ ژوند مطرح وي چې دخداى (ج) په لار كې وركړه او قرباني ثواب وي او ارزښت لري .

ترهغې چې په دغه مقدسه معنوي لار كې دمسلمان بنده او خداى (ج) ترمنځ شيطان ځاى نه لري مسلمان الله ويني او دهغه ذات په لور دكراماتو په كوتل صعود كوي او پوره كيږي او كه شيطان په منځ كې راغى بيا درنړا مخه ونيسي او داسې معنوي تپه تياره شي چې مسلمان دلارې پر ځاى دابليسي كندو او ګودالونو كې ولويږي سقوط وكړي او په كثافاتو كې داسې الوده شي چې يوازې جسم يې دانسان ښكاري اوبس په افغاني كلاسيكه او عنعنه يي جامعه كې دشهيد نوم

مقدس او غازي نوم افتخار و ، له هغې خاورې نه چې دجهاد نوم وارد شوی و ، افغانانو دتاريخ په اوږدو کې څو واره صادر کړ ، نن چې دنړۍ په هر گوټ کې دالله اکبر نارې خپرې دي او جهاد کوي سر لاري يې افغانان دي ، کله چې به زما مور ناروغه شوه ، په طبابت يې عقيده نه وه ، دتګاب په اخر کې به دشهيد زيارت ته روانه وه ، داستر شعار او تکيه کلام و چې مسلمان په جهاد کې تاوان نه لري چې مړ شي شهيد او چې ژوندی وي غازي وي چې په دواړو کې دپاك خدای جنت ورته گرځتي وي .

دافغانستان دتيرو پنځلسو کلونو جريان چې جلا او خاص مرحلې لرى دراتلونکو خطرناکو عواقبو او اثراتو په شمول په لاندې توگه څيړم .

ولې – څرنگه په کوم احساس جهاد شروع شو او څه نتيجه ترې نه په لاس راغله ؟

ولې او څرنگه يې داصلي مسير نه انحراف وکړ او څه نتيجه ترينه په لاس راغله ؟

راتلونکی جهادي احساس به څه وي او څه به په لاس راشي ؟

دنړۍ په يوه گوښه کې پروت ، غرنی او غريب افغانستان دپاك خدای دفضل او مرحمت الهی نه برخوردار و ، اسلامي جذبې او احساسات په کليو ، دښتو ، او درو کې ژوندي وو ، بوازې او بوازې په لويو ښارونو خاصتاً کابل په اواخرو کې ډير لږ دنورو اسلاي هيوادو په مقايسه په فيصدۍ کې نه شميرل کيده دتمدن منفي گردونه لويدلي وو افغانانو دنړۍ دوه امپراطوريو ته دورورۍ او اخوت په اسانې اعمالو اوروحيه ماته ورکړه او دايې ثابته کړه چې بوازې او بوازې ملي او اسلامي ورورې او اخوت غالب او شکست ناپذير دی ، که دمثال په توگه وگورو او متوجه شو اسلامي نړۍ چې زموږ نه پر نفوس ، مسلح او د حد او

اندازې نه بهر ثروت لرى او غني دي داسلامي ورورۍ په نه لرلو سره دکلونو کلونو را په دیخوا ( پخوا داستعمار او اوس داستثمار ) دلوبو میدانونه ګرځیدلي دي .

منځني ختیځ ته دافغاني سید جمال الدين دسفر اصلي هدف او مقصد داستعمار سره په مقابله او دفاع کې د ورورۍ داتحاد تولید او په نړیواله سطحه دمسلمانانو تر منځه ګډه همکاري او مساعي وه ، ګټې منافع ورورې تولیدوې دافغانانو قرباني او جهاد په نړۍ کې د جهاني مخالفت او مقاومت سره سره اسلام او مسلمانان يو ځل بيا په رسميت وپيژندل ، خو په ډير تاسف سره ناچار بايد ووايم چې زموږ څو ملګرو ديو مثبت عمل پر ځاى داسلام شيشه په خپل كور او هيواد كې داسې ټوټې ټوټې كړه چې پاك الله دي يې په خپل فضل ترميم كړي ، افغان مسلمان ولس دخپلو وينو په بدله دلاس نه الوتلى داسلام معنوى عقاب او شاهين دوباره په لاس راوړ او صحيح سلامت يې داسلام مشعل دارانو ته وركړ ، له بده مرغه زموږ ورونو او ملګرو ددې پرځاى چې له هغې نه ګټه واخلي چاپې وزرې غوڅې كړې ، چالكۍ او چا بڼې .

هغه وخت چې په افغانستان كې دوه آوازه پورته شول له يوې خوانه هورا له بلې خوانه تكبير ، يوې خواته روټۍ ، كپړا ، مكان بلې خواته وچه او خالي دخداى رضا ، يوې خواته مادي ګټې ، بلې خواته معنويات له يوې خوا وانبه او حيوانيت له بلې خوا انسانيت او كرامت دمسابقې په سنګرو كې ولويدل ، دپاك خداى دمقدس نوم آواز آسماني ملايكودهندوكش ، پامير ، سپين غر او بابا غرونو كې داسې منعكس كړ چې دشيطانت او الحاد ورباند يې ګونګ اوريدونكي كانه اوليدونكي يې ړانده كړل .

دپاك الله درضا له بركته چرسيان ، غله ، قماربازان ، قاتلان ، جاتيان ،

او پایلچان پاك او سپیڅلي مجاهدین او غازیان شول ، راپه یاد شي چې دتری منګل دګوی په کوتل روان وم پر مځکه واوري او یخګ،یو سټړی او ستومانه شوم او د تیزي خواته مې تکیه وکړه ، دشمال دمجاهدینو ګروپونه راغلل او زما تر مخې دتیریدو په حال کې وو . دیو مجاهد پلاستیکي څپلکې په پښو وې او پنډوکې یې ترشاو ، ماورته وویل بچیه واورې او یخك دي په دې څپلوکې به په عذاب شې، په خندا یې راته وویل چې صاحبه څپلی څه کوې پنډه کی مې ګوره ، ماوویل : پنډوکي کې دې څه دي ځلمي راته په ځواب کې وویل دده شکې ماشیندار، درې قطی کارطوس دي ، دغه مجاهد درې قطی کارطوسوته دومره خوشحاله و چې خپلې ابلې پښې یې له یاده وتلې ري .

کله چې دوی تیر شول دنظامي متخصص په صفت دا فکر او سوال راپیدا شو چې دکفر او الحاد لښکر ته دریل په وسیله تر سرحده او بیا دستر و لاریو په قطار ونو اکمالات کیږي او دخدای (ج) لښکر ته دمجاهد په اوږو و دابه څنګه شي ؟ داخو دانسان په منطق برابره محاسبه نه ده ، چې څومره مې محاسبه زیاتیده په همغه اندازه مې سوچ او فکر خرابیده او له وارخطایی نه عصبیت راته پیدا شو ، په پای کې مې له ځانه سره فیصله وکړه ، چې وطن داسې لیلا ده چې عشق ته یې وصلت دسرنه تیریدل دی او دخپل مجنون نه مرګی غواړي ، او نتیجه یې ستره کامیابي ده ، په دواړو حالاتو کې مرګ او ژوند ، خجالت او ناکامي نه لري ، دادانسانی ژوند یوازینی تجارت دی چې نقصان او تاوان په کې نشته . په همدې روحیه مې ځانته تسلي ورکوله او ډیر کوشش مې کاوه چې نور په دې مسایلو فکر او سوچ ونه کړم ، دناپوهی لپاره هیڅ غم نه و چې ژوندی وي ، او څه وو ډزه وه چې مړ

شوی نو خبره ختمه ده ، ټول غم اومشکل په مسلکي پوهه کې و چې مسلکي منطقي محاسبې به سړی لیونی کړي.

داخېرې او قصې چې ښځو گانې او زېورات خرڅ کړل او مهمات خریداري شول ، دکور دکالو او سامان په خرڅون د مجاهدینو خرڅ او خوراك وشو، په زړهاوو او لکهاوو دي ، کله چې به مو دشهید قوماندان داد میر کوچې نوم راياد کړ موږبه يې ویل چې هغه راته مه یادوئ چې زړه مې سوځي او دهغه شهادت بیا خرابېږي .

دشکې او گنبېرې ترمنځ دشیطان غونډۍ ته مخامخ دجلال اباد دښار دشمال لورته دمجاهدینو دجهاتو عمومي قوماندان په حیث مې دسترو عملیاتو دجگړن بابا په مرسته او همکارۍ شهیدان راوېستل او په مختلفو استقامتونو مې ولېږل ، دمبارکې روژې میاشت وه مازیگرو ، دښېوې او سورچ کلي په سه راهي کې مې پك اپ موټر ودراوه د دره نور قوماندان حلیم شاه شهید ورور او دگل مینا قوماندان دتره زوی په کې و ، دحلیم شاه پلار راغی او دروژه ماتي په خاطر يې خرماراکړه ماته يې وویل قوماندان صاحب فکر مه خرابوه زامن او وریرونه مې شعه ددې شهیدانو له قافلې نه وروسته انشاالله ددوی نه ښه ښه ځوانان درته رالیږم له ماسره دخدای (ج) په لاره کې دقربانی پسونه ډیر دي . څو ورځې وروسته دختم قران پاك او فاتحې دخبرتیا په خاطر دڅو منصبدارانو او قوماندانانو سره ددوی دهجرت کورته یکه غنډ ته ولاړم ختم او دعاگویی خلاصه شوه او ترینه رخصت شوم ، په سبا قوماندان حلیم شاه او قوماندان گل مینا چې زما ملگري وو راغلل او وی ویل چې حاجی صاحب تانه خفه دي وایی چې ده ماته دشهید مبارکې رانه کړه ورته ورغلم او مبارکي مې ورته ورکړه ، داجذبه احساس چې سپین ږیری پلار ته دشهید ... مبارکباد ورکوی په هیڅ اسلامي

هیواد او تاریخ کی مثال نه لری .

دافغانستان دملي اسلامي محاذ دمیرانشاه په نمایده گی کي دنماینده گی ډریور ظریف خان څدران او دهغه شپاړس کلن زوی ترمنځ جنجال و زوی ئې غوښتل چي جهاد ته ولاړشي خو پلاریې ممانعت کاوه ، ویل یې زه په خپله ځمه، زوی یې ډیر خفه او په ژړا شو ، نورو قوماندانانو له ظریف خان څخه وغوښتل چي اجازه ورکړي چي زوی یې جهاد ته ولاړ شي دتورې غاړې په عملیاتو کي ددرې گونې اتحاد مجاهدینو برخه اخیستی وه ،چي خوا مولوی حقانی مابین کي حاجي مله خان گربز دحرکت اوسني خوا ته زه وم ، عملیات وشول او چندان موفقانه نه وو ، شهیدان می له غره ته راکوز کړه او په پك اپ موټر کي مي دمالك جان په ډریوری شاته ولیږل ، چي نور هم کوز راغلم دشپې دوه بجې شاوخوا ، خلور پنځه مجاهدین گرد ناست وو ، ویل یې له موږ سره شهید دی ، دغه شهید دظریف خان ډریور زوی و .

په سبا دورځې دماچسو کمپ هدیرې ته ولاړم ، هغه لحظه چي شهید یې له وینو رنگ کالو سره په قبر کي کوژاوه دشهید دتره له سترگوته او ښکې راغلې ، دشهید مور غږ وکړ او وی ویل چي ته ماته طعنه او خجالت مه راکوه ، داوینه په جنت کي له حورو سره زما دزوی دواده دنکریزو رنگ دی ، داو دیوې افغاني مسلماني مور اسلامي او افغاني احساسات چي بشر یې مثال نه لري .

دغه شان مثالونه له هر افغان سره شته او ډیر دي ، جنگ مقدس ، هدف مقدس ، نتیجه او حاصل مقدس وو .

دشوری امپراطوری سقوط وکړ ، دشمال مسلمان او غیر مسلمان جمهوریتونه آزاده شول ، دمساجدو دمحرابو په سرونو چي دلینن مجسمې ولاړې وې اوس بیرته مناري شوې اذانونه کیږی او قران مجید

ویل کیږي مشرقي اروپا آزاده شوه ، المان یو شو روحاً مړه امریکه بیرته ژوندۍ شوه ، سوړ جنگ ختم شو ، په ملیونونو ډالره چې په وسله او انسان کشۍ مصرف کیدل تصرف شول ، افغانستان نور دشمال له کمونستي خطر نه بې غمه شو، نور کمونست له منځه ولاړ ، دروسانو تودو اوبو ته آرزو او ډیر پخوانی هدف دخارور لاندې شو پاکستان له کمونستي خطر نه خلاص شو ، دروسانو له دشمنۍ نه دچینایانو ددوستۍ په خاطر بیغمه شول ، له هندوستان سره په دشمنۍ کې نور گاونډي یاغیر گاونډي دشمن نه لري هغه کمونستي او سوسیالستي شوقونه چې په منځني ختیز کې پیدا شوي وو نور نشته ، دعربي ممالکو دشورویانو په لور امنیت او مصؤنیت تامین شو ، لنډه داچې نړیوال لوی تغیر منځ ته راغی که موږ وغواړو افغانستان تجارتي بین المللي لار او مرکز کیږي ضروربايد ووایم چې یو کار غلط وشو چې دشوروی دامپراطورۍ له سقوط سره بین المللی موازنه خرابه شوه او دنړۍ دباداري مقام ډیر بیرحمه ، دیر بې عاطفې هیواد امریکې ته پاته شو.

هغه وخت چې په افغانستان کې دمقدس آواز پر ځای دقدرت طلبۍ ، خود خواهۍ او خود غرضۍ آواز شیطان دهندوکش ، پامیر ، سپین غر او دبابا په غرونو کې منعکس کړ جنگ کثیف ، هدف کثیف او نتیجه کثیفه شوه ښه کسان بدان شول ، غله شول ، رهزنان شول ، قاتلان شول .

دتنظیماتوله مشرانو نه هیځ افغان ، هیځ مسلمان ، دوست او بیگانه دا انتظار نه درلود ، که دوی ښه سیاستمداران نه وو دا ددوی قصورنه و ، که دوی مسلکی جنرالان نه وو دادوی قصورنه و ، دوی زموږ دټولنې ډیر دښو کسانو په نامه یادیدل او مدعیان وو ، په افغانستان

کې دوی داسلام مقدس دین شیره او شربت څانوته بلل په دوی کې داسلامي نړۍ باشهرته روحانیون وو، په دوی کې ددیني فلسفې پروفیسوران وو ، ډېر متبحر علماوو .

دالازهر پوهنتون یا داسلامي نړۍ چراغ نړیوال اسلامي اداره مخکې بیایي ولې دهغه پوهنتون افغاني پیروانو څه وکړل او څه کوي ؟ ډېرو دافکر کاوه چې دکمونستی نظام دړنګېدو او دنجیب له سقوط نه پس قدرت به په ځای پاته وي دوی به یې نه کوی او تور به څوك نه وي.

یوه ورځ پخواني پادشاه اعلیحضرت محمد ظاهر شاه ته یو سپین ږیری کندهاری له زامنو سره راغی ، اوو زامنو یې په ترتیب سره داعلیحضرت لاسونه ونیول ، اعلیحضرت ورته وویل نام خدای څه ښه زامن لري ، سپین ږیري په کندهاری ژبه ورته وویل ( په ددوی ....)

یو دې وای ستا په شان دې وای ، مخصوصاً دپښتو ژبه دمروال او د معنویاتو په باب ډېر غني او ښه ښه متلونه لري، لکه سل دې وره یو دې نه ، تیزی ډېرې کار په منه . چې دستا رتړې هزار دی ددستار سرې په شمار دي . په کارغه مړ ز ان نه نیول کېږي ، او همداسې نور.

یو ماشوم چې پیاله ماته کړي ، خجالت باسي ولې دوی مملکت خراب که چرت یې خراب نه دی ، که دچا جسم دغوښو وی بت نه وی نو جسم کې زړه وي احساس لري احساس چیرې ؟ که گفتار د خولې وي نو خوله تاثیر لری معنا لری او مفهوم لری ، دوی څه وویل او څه کوي؟

له ما سره داستاد رباني ، آیت الله محسني او مجددي داولو میاشتو دخبرو کسټونه شته دي ، چې هغه اورم او اوس حالات گورم نو وایم یا داخبرې ددوی نه دي او یا دوی هغه کسان نه دي ، ددوی دټولې اسلامي مبارزې نتیجه د سنځو په ټکرې او څادر کې خلاصه شوه .

په دې ليکنه کې زموږ دوهمه خبره داوه چې دجهاد داصلي مسير دانحراف نه څه نتيجه په لاس راغله ، که څه هم داخبرې زړې شوې چې دربانۍ په اسلامي خلافت کې مالف نه تر يا چورې هيڅ نشته ، کارنشته معاش نشته ، معارف ، زراعت ، اقتصاد ، تجارت ، صنايع او نور نشته خو تر ټولو نه مهم دسرومال او ناموس امنيت او مصونيت نشته .

هر انسان دطبيعت په تقاضا ښه ژوند ته هڅه او تلاش کوي ، او غواړي چې حد اقل سر و مال او ناموس يې په امن کې وي په همدې خاطر کابل مرکزيت له لاسه ورکړی دی ، دهندوکش د شمال افغانستان دهې پر ځای چې خپل سر ومال او ناموس په خطر کې واچوي او دکابل کنډوالو ته راشي په ډېره خوشحالتيا سره تاجکستان او ازبکستان او دشمال نورو جمهوريتونو ته روان دي ، او ټوله سرمايه هلته غرقه شوه ، دهندوکش جنوب افغانان ددې پر ځای چې دکابل په راتګ سره په لاس کې ونيسي مال له لاسه ورکړي او بې شرمۍ ورته ورسيږي په ډېر راحت سره ايران او پاکستان ته روان دي .

دکمونستانو په وخت کې دکابل کشش او جاذبه له هره لحاظه زياته شوې وه خو اوس په افغانستان کې دکابل مرکزي اهميت له منځه تللی دی ، مطلب دادی چې مرکز «کابل» دسقوط په حالت کې دی ، بله خطرناکه مسأله دفدرال بازۍ ده چې له هيواد سره ملګرې شروع شوې دي ، دجهاد په نتيجه کې الله پاك افغانستان دبين المللي روابطو او تجارت مسير وګرځاوه چې دهرې ورځې په تيريدو طلايي او حياتي چانسونه له لاسه ورکوي .

دريمه خبره مو داوه چې راتلونکې جهادي احساس به څه وي حه به په لاس راشي .

دي خبري ته چي دمرګ او ژوند سوال دی دوګړو او دهیواد بود او نابود پوري اړه لري څوك متوجه نه دی . هغه دادی چي واقعات هرکله پیښیږي ، څو دواقعاتو دمخنیوی او دمنځه وړلو لپاره تدابیر په کار وي. مخکي موږ وویل چي جهاد دخوازه ژوند نه دخدای په لاره کي تیریدل دی او دا انګیزي او موجبه اسباب لري افغانانو په ډیر لږ نفوس یو نیم ملیون کسان شهیدان ورکړل ، په سلهاو زرو معیوبین ، کونډي او یتیمان شول ، داټوله قرباني دخدای لپاره وه نه داستاد رباني یا دنورو لپاره ، درباني نوم ځکه اخلم چي برحاله خلیفه دی .

غوارم چي په خپل ځان یو مثال راوړم ، چي تشریح لنډه او پوهیدل یي اسانه شي ، ماته مي دخپلي کورنۍ شهیدانو ، کنډو یتیمانو او همدا اوس آواره او سرګردانه ژوند یا دونه شرم ښکاري، ځکه چي زه دافغانستان ټول شهیدان کونډ ي یتیمان او بدبخته آواره ګان دخپلي کورنۍ غړي بولم ، زما پلار دطوپ په اصابت په مسلحانه جهاد کي داسي ټوټي ټوټي شو چي قبر نه لري ، ټوټي یي ګیدړانو او شغالانو وخوړي ، ځکه چي ځلمیانو عقب نشیني وکړه او دی پاته و داددي لپاره نه و چي جناب رباني دي زما بادشاه شي یادي احمد شي یا دي محمود شي مطلب مي دانور دي .

زما جهاد او قرباني ددي لپاره نه وه چي زه دي ځوړ او تاراج شم ، کور دي راته وران کړي او دهغو کسانو له لاس نه چي زما په لاس کي غټ او مجاهد شول بیا قرار او مهاجرشم ، چي دخدای او وطن سوال نه وي پر دوی باندي زما دیو چرګ قرباني حرامه ده .

دروغجن دخدای دښمن وي ، زه کله کله له خپل ځان څخه داسوال کوم چي که له شمال نه اسلام کریموف ، له جنوب نه محترمه بینظیر بوټو او دغرب نه آیت الله خامنه یي په افغانستان باندي هجوم راوړی نو زما

دریغ به څه وی ؟

بیا به نعره تکبیر وایم دچا لپاره ، بیا به په وینو سوریم دچا په خاطر ، بیا به دبدبخته ولس بچیان په جوش راولم دڅه لپاره ، بیا به خیرات خوري کوم دچا دبانکونو په خاطر بیا بیا او بیا ؟

لنډه داچې دراتلونکي لپاره په دې اولس کې دقربانۍ انګیزه نشته او داملت نور ددې خلکو په خولو پیازنه خوري .

تبصره : پورته ماویلي دي چې نعره تکبیر ووایم دچالپاره ؟ په دې خبره کې زما مطلب دلارې دغلو نه دی دتکبیر نعره ما ویلې دخدای لپاره اوبیا یې وایم دخدای لپاره خو زما او زما دخدای ترمنځ لاره کې غله وي، بله مهمه خبره دوګړو ګټلی اسلامي حقوق دي چې دوی زموږ نه غصب کړی دی ، الله پاک ته امتیاز په عقیده دی په قرباني دی نه ګفتار او نه لباس ، دوی دمسلمان ولس په قربانیو ګټلي ارزښتونه او فتخارات له منځه یوړل .

دپاره چنار ددوه مساجدو په منارو دسلو ته زیات کسان قرباني شوي دي زموږ مساجد تخریب او له منځه ولاړل . جناب مشر حضرت صاحب دموی مبارك په خاطر محشر جوړ کړی و اوس زموږ قران شریفونه په سوخت ورسیدل .

په دې هکله داسلام خلیفه څه وايي ؟ چې زما دسرومال او ناموس تضمین نه وی دخلیفه څه معنی او زما څه په کار ؟ یو ماښام دترتیب شوې جلسې او جرګې په خاطر دوستان او دښمنان څرخي پله ته راټول شوی وو ، دماښام لمانځه ته دامام دهدایت په خاطر په صفونو کې اوږه په اوږه ولاړ وو . دلمانځه دختم په دعا کې هر یو رهبر جلا جلا ویلې خدایه موږ ته اتفاق راکړی . یا خدایه موږ متحد کړې ، زه حیران وم ، ... خدایه ... پر موږ رحم لطف اوکرم کړی دی او داسې شی دې راکړی

ی چې دهغې په وسیله او استعمال اشرف مخلوقات شوي یو چې نوم ی ماغزه دی ، زموږ ملکري رهبران ځنګ پر ځنګ ناست او دمغزونه کار نه اخلي او دګناهونو لپاره معاذرې لټوي ، خلك اسمان ته ځي موږ پر محکه ځای نه لرو .

رهبران هر یو په خپل نوبت سره دخارجي مداخلو نه شکایت کوي ، دې ته عذر بدتر از ګناه وایی په دې خبره خپله ضعیفي داعتراف کولو معنی ورکوي . ای اس ای تر آخره پورې په مسایلو کې سی ای ای ته دمداخلې اجازه ورنکړه انګلیسانو دامریکایي مقاماتو نه خواهش وکړ چې له دوی سره خپلې پلی قواوې بوسنیا ته ولیږی ، امریکاییانو وویل چې موږ خپلې قواوې بهر ملکونو ته نه لیږو ، څه موده وروسته په هیتی کې دامریکی قواوې داخل شوې چې انګلیسان پرې خفه شول امریکاییانو دپتروس غالي په خواهش ناتو ته هدایت ورکړ ی چې د سربیانو مراکز بمباران کړی انګلیسانو شدیداً مخالفت وکړ او ناتو ته یې اجازه ورنه کړه ، په نتیجه کې دانګلیسانو او امریکاییانو تر منځ مناسبات خراب شول . انګلیسانو په صراحت ورته وویل چې وروړي به کوو حساب ترمنځه .

تا زما په خواهش کارونه کړ او خودسرانه په هیتی کې داخل شوې زه یې ستا په خواهش نه کوم ، مطلب دادی چې انسان باید په هرحال کې خپل متانت وساتي ، ملی منافعو ته ارزښت ورکول دانسان دشخصیت دتعین معیار وی .

که دوی په خپله دمداخلې وسیله نه شی هیڅوك مداخله نشی کولای، خو له بده مرغه یو دیوه غیزه کې ولویږی بیا بل دیل .

# شوروي جنګیالان

دغه موضوع یو عنوان نه ، بلکې یو عسکري تکتیکي کتاب دی چې قاعدتاً له هرې جګړې نه وروسته لیکل کیږي او په نړیواله نظامي تکتیکي سطحه ستربدلون راځي ، څو دهغې جګړې له تجاربو نه په نورو جګړو کې مثبته استفاده وشي تر هغه وخته چې دداسې یو کتاب لیکنې ته امکانات برابریږي غواړم چې دیورتني عنوان لاندې په بعضې قسمتونو کې هسې سطحي یادونې وکړم .

روسان دتاریخ په اوږدو کې دغربي تاخت او تاز لاندې راغلي وو دټول هیواد په سطحه مظلوم واقع شوې دي او کله دوی په خپله پر غلګر شوي دي ، وحشت او ظلمونه یې کړي دي ، ددوی په موزیک کې روحي تسکین او آرام نشته ټول مارشونه دی شوردي او انقلابونه دي ، کمونستي دستګاوو په داتصور چې جنګي دفاعي روحیه به په روسي وګړو کې ژوندۍ وساتي دافراطي تبلیغاتو په نتیجه کې په وګړو

همیشه غم پروت دی ، خیره کې تازه گي او خوشحالتیا نه لیدل کیږي .
کله چی دجنگ خبري یاقصې راپورته شي کـهښحه وي که نر دشرابو بوتل ته لاس کړي ترهغې یې خوري چې په ځای ویده شي ، ددوی دسترو نظامی تطبیقاتو نمایشات ددوی ډیر ستر او مجلل عسکري رسم گذشتونه په خپل ذات کې ددار معنی ورکوی ، دروسانو ټول سیستم داسې و ، لکه چې دیوې مخروبې تر مخې دلرگو پرده ونیسې او هغه رنگ کړې خو چې دننه خاورې او گندونه لیدل شي .
دوی دتظاهر نه په استفاده غربیانو ددې دپاره چې ددولت دبودجې نه پوره برخه نظامیان تر لاسه کړي نو دوی به یې خپلو وگړوته خطر ناکه ښودل ، ددوی سور انقلابي رنگ ، جنگي مارشونو او بعضې ځایونو کې بربري او وحشیانه اعمالو څه ناڅه نړیوال ډار تولید کړی و .
په غربیو هیوادونو کې دسوسیالیزم او کمونیزم پیشرفت دوی داسې داسې یو سیلاب ته شباهت ورکړی و ، چې څوك یې مخه نشي نیولای معنی داچې داسې یو ټوپك و چې ښتن او دښمن دواړه ډا ریدل ، له ټولو قیوداتو سره سره بیا هم دنړیوال پیشرفت او دتمدن بوی ددوی نه لور روان و .
دتدریس او تحصیل په کلونو کې موږ به پاکستاني توربوټان په مسخ کې دلندن ټاپه په کابل کې قیمت خرید یو سلو شل افغانۍ او په شوروی کې په شپیته روبله خرڅاوه، د زنانه دسرنیلون دستمال په کابل کې پنځه افغانۍ او په شوری کې لس روبله خرڅیده ، په ټولو سا... کې شوروی جامعې په مجهوله نامعلومه او مایوسه حالت کې ژوند کاوه ، که دوی کې دمدافعې قهر موجود و خو دحملې او تعرض نه یې نفرت درلود .
افغانستان ته دراتگ نه مخکې دوی ته داسې تبلیغ شوی و چې

افغانان زموږ سنه ګاونډیان دي زموږ پخواني دوستان دي ددوی پر هیواد امریکاییانو او چینایانو تیری کړی دی موږ یوه اخلاقي دنده لرو ، چې ددوی مرستې ته ځان ورسوو څو کله چې دافغانستان خاورې ته راغلل نه امریکاییان وو نه چینایان. له غریبو افغانانو سره مخامخ شول ، ددې جریان مکملې دوسیې له ما سره شته دی چې روسي منصبدارو او عسکرو معلومات راکړي دي . روسي قواوې په افغانستان کې ګورې چې خلك غریب دی خو له بلې خوا دماشومانو په لاس کې جاپاني ټیپ ریکار در و، وړه دجیب راډیو چې اته لنډ موجونه یې لرل لیدل ، دډیر غریب کابلي په ځان کې امریکایي کاوبای پتلون و، په هر دوکان کې دڅو خارجي هیوادونو کالي او سامان وو. دغه شیانو دروسي عساکرو په سرونو کې سوالونه راپیدا کړل .

روسانو په اول کې زیات نه داسلامي جمهوریتونو ، لکه تاجکستان ، ازبکستان ، ترکمنستان ، او قزاقستان او نورو نه عساکر راوړي وو په دې فکر چې دوی به دمشترك کلچر ، ژبې ، رنګ ، لباس او مذهبي ګډون په وسیله به دافغاني وګړو زړونه په لاس راوړي ، له خلقي اردو سره به دوستانه روابط تاسیس کړي خو داټول سرچپه شول او حیره دې ته ورسیده ، چې شوروی عساکرو.له افغانانو سره دجګړې اررو نه وه .

وروسته له هغې نه روسانو دغه قواوې په روسي قواو بدلې کړې ، کله چې روسي عساکر افغانستان ته راغلل دبازار رنګ ، غربي مالونو سوغې کړل ، دجنرال نه تر عسکر پورې دمهماتو ، وسلې او دتیلو په خرخولو شروع وکړه او غربي سامان به یې رانیوه ، وروسته له هغې نه په چرسو او تریاکو واوښتل او بیا دعالي رتبه منصبدارانو په سطحه دآزاد بازار نه هر یکي یې دالر ، خسسل او پټ به یې ذخیره کول .

په اراضي کې نابلده وو ، غرنۍ اراضي ، تنګې درې دلویو قطعاتو سوق او اداره ډیر مشکل کار دی ، دروی داردو جنګي نظام په سترو قطعاتو او قواوو لکه فرقې ، قول اردو او اردو وو ، مګر په افغانستان کې په ډیر مشکل دلوا داستعمال ځای پیدا کیده ، چې په همدې مناسبت دفرقو جنرالان له مشکلاتو سره مخامخ وو ،

دسترو او لویو اردوګانو لپاره ، لکه دشوروي اردو په غرنۍ اراضي لکه افغانستان ګوریلایي جګړه ، لکه دافغانانو سره ډیر لوی درد سروې ، دفرقو قوماندانان دخپلو قطعاتو عملیات نشي لیدلی ، په همدې مناسبت سوق او اداره سخته شي ددرو تر منځ دقطعاتو تیتیدل او یوازې او جدا کیدل ددښمن په اراضی کې دعساکرو مورال خرابیږي ، مخصوصاً دشپې له خوا دغرونو هر تیږه ورته دښمن ښکاري ، یعنې نابلده دی ، دقطعاتو غټ والی ، غرنۍ اراضي ، تنګې درې ددوی لپاره مشکلات وو .

په غرونو او درو کې دبمباریو ، لږې ویشتونکې راکټو او دتوپو درنو وسلو انداختونو تاثیر لږ و چې دا ددوی نور مشکلات وو .

دمجاهدینو په ډیرو لږو انداختونو او فیرونو به روسانو په زرهاوو د درنو وسلو انداختونه کول او بې سببه بې تاثیره بمباران به چالان و ډیر بې ځایه مصارف به یې کول او جنګ به یې په لوی لاس ځانته ګران کړ دا ددوی نور مشکلات وو .

بې سببه اوبې موجبه دکلو ورانول او خلک هجرت ته مجبورل او ځانځا داولس نفرت او کینه لا زیاتول دادوی سترا غلطي او مشکلات وو .

کله چې روسي قطعات افغانستان ته راغلل تر ډیرې مودې پورې دوی دنړوال تکتیک نه کار اخیسته ، په غرني او مخصوص تکتیک بلد نه

وو ، کله چې به دطیارو بمباران او توپچي انداختونه خلاص شول بیا به دوی پلي قطعات تقریباً په ولاړه روان وو . په دې فکر کې وو چې مجاهد نه ښکاري ځکه په لین به روان وو . دمجاهدینو کوچنی گروپ به چې دتیزو تر شا ټینګ او پټ و ، پر دوی به یې ډزې شروع کړې او دوی به ډیر تلفات ولیدل ، چې دادوی بل ستر مشکل و ، کله کله به ددښمن قطعات دمجاهدینو په انتظار وو ، چې په ورځو او ورځو به دمجاهدینو درك نه و ، کله چې به دوی اصلاً دمجاهدینو فکر نه کاوه ، ناڅاپه به مجاهدینو حمله وکړه او دوی به ډیر تلفات ولیدل ، جنګونه په عمومي توګه یو دبل په مقابله کې دیوه استقامته اوسي یعني ددوست او دښمن قواوې په یوه معین استقامت مصروفه وي ، خو افغانستان کې ملي قیام و او له هرې خوا دمجاهدینو دحملې انتظار کیده چې داد دوی بل ستر مشکل و .

ددوی په فکر چې دوخت په تیریدو به دمجاهدینو جنبش ختم شي خو ددوی دهیلو اوارزو مخالف دوخت په تیریدو سره دمجاهدینو شدت او حملات لا زیاتیدل ، دا هم دوی ته مشکل و .

دډیرو تلاشونو سره سره دوی موفق نه شو چې دافغانانو او مخصوصاً دخلقي اردو زړونه په لاس راوړي . برعکس ددوی پر ضد کینه او نفرت زیاتیده ، دوخت په تیریدلو سره دوی پوهیدل چې دغه جنګ دوی ته دجنرالانو له امر پرته بل کوم ملي ، عقیدوي مشروعیت او قانونیت نه لري چې په همدې خاطر تر آخره دوی دزور او جبر جګړه کوله . دتجهیزاتو خرابوالی او په خپل وخت او زمان کې داعاشې او خوراکي موادونه رسیدل او په خپل لازم وخت کې ددوا او تداوی نشتوالی ددوی دپریشانۍ لوی سبب و . دکورونو او کورنیو سره ددوی خط روی او رابطه ډیره نه وه کله چې روسانو خپل تکتیك ته تغیر ورکړ او خلقي

قطعات یې تر مخه او روسي قطعات ترشاه شول خلقي عساکر دفرصت له پیدایش سره سم دمجاهدینو لورته تښتیدل دادروسي قطعاتو لپاره لوی مصیبت شو . دوی حیران پاته شول چې چاته جگړه کوی ؟ هغه چاته چې دوی یې مرستې ته راغلي دي ، هغوی په خپله تښتي . دوی په افغانستان کې دوست پیدا نه کړ ، چې داهم په عسکري معنویاتو ډیر تاثیر کوي .

په کابل کې ددولت په چوکاټ کې بدلون هم دوی حیران کړي وو ، دوی دکابل له مشرانو سره دشمني رااخیستې وه .

له ارگه نه دکارمل په وخت کې افغان جگړن پیښور ته راغی او په معلوماتی پوستنو کې یې وویل چې ببرك په ارگ کې نظر بند دی ، کله چې دگل خانی له دفتر نه لمر لپاره راوځي دروسي صاحب منصب نه اجازه اخلي ، او کله چې وخت پوره شي روسي منصبدارورته دننوتلو اشارت ورکړي ، بیا ببرك خوله جینگه او ساعت ته اشارت وکړي او د گوتو په شمار روسي منصبدار پوه کړي چې څو دقیقې وخت لا پاته دی روسانو ته دا ثابته شوه چې دغه جگړه ددوی په گټه نه ده کله چې ددوی عادي قطعات دافغانانو په گوریلایی جگړو کې ناکامه شول دکوماندو قطعات یې راوستل .

کوماندو قطعات په کوماندویې جگړه کې دکوماندو گانو پرضد موثر نه وو ، مجاهدینو غښتې قوماندانی او قرارگاوی نه درلودلې دمجاهدینو لوژستیکي ستري ډیپوگانې نه وې مجاهدینو ستري اکمالاتي لارې نه درلودلې مجاهدینو دتجمع ستر مرکزونه نه وو ، په همدې مناسبت ډیره مثبته نتیجه یې لاس ته رانغله دستري ناکامی او شکست سره مخامخ شول .

دیوې اردو نظامی طاقت دهغې دجنرالانو دستراتیژیکي فهم او دانش

معنی نه ورکوي ، شوروپانو ټول نظامي فشار دافغانستان په جنوبي سرحداتو واچاوه، دجنرالانو اصلی هدف داو چې دمجاهدینو اکمالاتي لارې بندې کړي . دې کم عقلانو داراضی قبلي مطالعه نه وه کړې ، دافغانستان او پاکستان تر منځ دسرحدي لارو بندیز امکان پذیر نه و ، اکثراً ټول کال هوا ښه او داکمالاتو لپاره څه مشکلات نه وو ، مجاهدینو درېل پټلو او پاخه سړك ته ضرورت نه درلود ، خرو ، پاپو گانو او اوښانو اوچره لارې په سلهاوو حتی بې حسابه وې .

دشوروی جنرالانو اتکا دهمیشه لپاره په زور وه ، که په یو ځای کې به دمثال په توگه پنځه ټانکونه ضرورت وو دوی به لس ټانکه استعمالول ، که دوی ستر اتیژیکي دانش درلودلي دوی به دجنوبي افغانستان دپاکستان سره سرحدات په لږو قواو تثبیت کړي وو ، بیا به بې افغانستان له نظامي نظره په دوه برخو ویشلی و شمالي او جنوبي افغانستان ، هندوکش ، پاپاو فیروز کوه دسرنه تر اخره ټولې درې یا خلور لارې لري چې هغه هم دکال څو میاشتې په واورو بندې وې ، دوی باید هندوکش بند کړی ولی ، چې له جنوب سره بې ارتباط قطع شوی وای او دشاله خوا به هم بیغمه وو . شمالي افغانستان بې بیا په دوه برخو جلا کړی وای او فاصل خط دوشی او شیرخان بندر او داخط هم په ښي خوا کې شامل وای ، دوی باید دشمالي ولایاتو دمهاجرینو مخنیوی کړی وای ، او په ډېره قراری سره بې شمالي افغانستان په تمامه‌معنی پاك كاري کړی وای ، دجنوبي افغانستان لپاره دا امکانات کم وو ، چې افغانستان کمك ته ولاړشي ، دخلکو دازاد او تکلیف نه باید په اعظمي توگه مخنیوی شوی وای ، کله چې دشمال نه بې غمه شوی وای بیا په سقلت سره جنوب ته راغلی وای او جنوب هم باید جنگي تقسیمات شوی وای ټولو نه بله مهمه احمقي داوه چې دوی

دمجاهدینو ستره منطقه یې جهاد شروع کړ ، دوی کوشش کاوه چې دمجاهدینو پسې ولاړشي قاعدتاً مجاهدینو په خپله منطقه کې ډیر تکړه وو ، په اراضي کې تیزه په تیزه بلد وو ، دکلو همکاري وه دوست او بیګانه یې ښه پیژندل حتی له یوه لوري به بې خپله کرنه کښت او کار کاوه له بلې خوا به یې جهاد کاوه . ددې لپاره چې دافغانانو ډیری درې خلك دبلې درې له اوسیدونکو سره ډیر تفاوت درلوده په همدې نسبت او نورو موجبه اسبابو دمجاهدینو دپاره ګرانه وه چې دیوې منطقې نه بلې ته دجهاد لپاره ولاړشي او ملحه پاته شي .

په همدې خاطر باید دوی مجاهدین مجبوره کړي وای چې ددوی پسې تللی وای او دنابلدی سره مخامخ شوی وای .

شوروی جنرالانو باید دپاکستان په عمق کې فشار زیات کړی وای او په عین زمان کې څه ناڅه هنغوان یې هم مجبورولی وای چې په دې صورت کې دپاکستان سیاسي استقرار بر هم او درهم کیده او په نتیجه کې دپاکستان ولس حمایت دمجاهدینو په هکله تغیر کاوه او کمیده چې دا هم دکمونیزم په ګټه وه . ( لنډا داچې وایې نام رسنګم به ازوسعم )

دروسانو په قطعاتو کې دحرکت آزادي نه وه ، حتی چې په ډیرو سختو حالاتو کې به دوی دخپ قوماندان امر ته انتظار اوسیدل ، برعکس مجاهدینو په پوره آزادۍ سره خپل دخوښې عملیات کول .

هغه کارونه چې روسانو دجهاد په آخرو کلونو کې وکړل که په اولو کلونو کې یې کړی وای دابه ددوی په ګټه وو .

کله چې به ددوی اکمالاتي قطار له یوې منطقې نه بلې ته رواڼ و ، په لاره کې به یې پنځوس په سلو کې حتی زیات دلاسه ورکړ او دمجاهدینو په کمین به واوښته مګر په آخرو کلونو کې به یې دیوې عرادې قیمت قوماندانانو ته ورکړه او عموماً قطار به سالم تیر شو ، په

اوایلو کی په روسانو خپل قوتونه دپوستو په شکل هرې خواته افراز کړل داغلطي وه ځکه قطعه په ورو ګروپونو تیته او اکمالات قیمته ، مورال ضعیف ، جنګي توان او قدرت کم اکمالات مشکل او دوظیفې داجراقدرت یې نه . په اواخرو کې تیت او پراګنده قطعات سترو مرکزونو ته راټول کړل چې دایو معقول حرکت و ، اکمالات ساده او اسانه او ارزانه په وظیفه موثر مورال یې قوی و .

په افغاني او اسلامي جامعه کې یې فحش مشروب او همداسې نور شیان ممنوع وی ، بلیك میل ډیر موثرویې او ښه نتیجه ترې نه په لاس راځي ، روسانو مخصوصاً نجیب دغه کار کاوه خو په لویه پیمانه نه و حتی داهم مهم و .

روسانو هر راز تکتیك استعمال کړ شاید هدف یې تجربه وه ، امل په عمومي توګه ثبات او تکتیکي فکر استقرار نه درلود ، چې انصافاً سوچ وکړم په روسانو کې ما دعقل او فکر څه خاص شی ونه لید ، منطق ، یې په ټانك او توپ استوار و او ل داچې واقعي انسانان کمونست چې دانسانی طبیعت نه مخالف کار دی نه کیږی ، بله داچې نژدې یو قرن تیرشو خو دوی داخپل سټلایټ جمهوریتونه خپل نه کړه په توپوبې ساتي ، خپل دوه سکه زامن یې چې خلق او پرچم وو متحد نه کړه او تر آخره یې زامن په دښمنۍ راخته او پلارو ورته سیل بین و .

هغه وخت چې دخلق او پرچم واکداران متیقن شول چې عاقبت یې ناکامي ده بیا یې دعیاشۍ ترڅنګه راتلونکې په نظر کې نیولو سره په چور او چپاول هم لاس پورې کړ چې ددوی شکست او ماتې ته یې سرعت ورکړ ، کله چې روسان پوه شول چې الف : د مجاهدینو مقاومت ختمیدونکی نه دی. ب : روسان نشی کولای چې خلقیان او پرچمیان په افغانانو ومنی. ج: امریکاییان نه غواړي چې مسایل حل شي بلکه

غواړي چې نور هم روسان په افغانستان کې په اقتصادي لحاظ له پښو نه ولوېږي ، دغه درې اصلي عوامل وو ، چې روسان په ماتې له افغانستان نه ووتل .

# مجاهدین او مسلحانه جهاد

په عمومي توگه غیر مسلمین مجاهدینو ته جنگجویان مقدس او جهاد ته جنگ مقدس وایی ، جنگ او جنگجویان مقدس دنړۍ په گوټ کې امکان پذیر وي چې پیدا شي ، په هر هغه هیواد چې له بل هیواد نه پرې تجاوز او حمله وشي دهغه هیواد مدافعینو ته جنگجویان مقدس او هغه مدافعوي جنگ ته جنگ مقدس ویل کیږي او هغو کسانو چې دمتعرض هیواد سره یې مرسته او همکاري کړې وي هغوی هم ، لکه زموږ په شان چې ببرك كارمل ته وطن فروش او ملي خاین وایو هغوی هم دغسې کسانو ته وطن فروش او ملي خاین وایي. په اسلامي هیوادونو کې دعقیدې په لحاظ د نورو غیر اسلامي هیوادونو سره فرق دادی چې په ډیرو هیوادونو کې دیني او عقیده یي مسایل آزاد دي وگړي کولای شي چې په هر دین کې په خپله خوښه داخل او بیا په خپله رضا سره ووځي ، په اسلام کې فرق لري . هر غیر اسلامي سیاسي الحادي ، لکه دکمونستانوله تحریك سره دننه په هیواد کې جهاد کیږي ، لکه چې دحزب دموکراتیك خلق افغانستان سره جهاد شروع شو دافغانانو مسلحانه جهاد په دوه برخو جلاکیږي چې یو یې اسلامي او بل یې ملي اسلامي و .

دحزب دموکراتیك خلق افغانستان پرضد جهاد یوازې اسلامي و ، کله چې خلقیانو او پرچمیانو سیاسي قدرت ترلاسه کړ ، که څه هم نظام دروسانو دست نشانده و او پرچمیانو دروسانو په همکارۍ قدرت ته

کې داخل شول ، که چیرې په هیواد کې روسی قواوو چاته بې ناموسي رسولي وي نو مفعول او کوروالاته بې ناموسی نه ویل کیږي ، دافغانیت په اصولو کمونستی مشرانو ته بې ناموسان وایی ، په عین شکل که کوم عرب یا پاکستانیانو مسلحو قواوو په جهاد اویا په داخلي جګړو کې چاته بې ناموسي رسولي وي د هغې مفعول یا مفعولی او دهغوی کورنیو ته بې ناموس نه ویل کیږی ، بلکه فاعل او دهغوی مشرانو ته بې ناموسان ویل کیږی ، په هر حال دروسی قواوو په راتګ ملی قیام جوړ شو، چې ملی ، اسلامی شکل یې اختیار کړ .

په جنګي لحاظ افغانان ډیر خوشبخته وو ، چې روسان دکمونستی نظام سره سم نه وو راغلی . که روسان په اول کې راغلی وای ماته دجهاد موفقیت دنظامی منطق په اصولو مشکل ښکاریده ، خو روسان په داسې وخت کې افغانستان ته راغلل چې جهادي ټول احضارات تکمیل وو ، ددوی په راتګ سره یوازې او یوازې چوکاټونه ستر او غټ شول اوبس .

جبهات معلوم ، قوماندانان معلوم ، قوماندانې ګانې او سیاسي اداري معلومې ، جهادي جنګي ساحې معلومې جهادي اکمالاتي چاینلونه معلوم وو ، دامسایل دجنګ اساسي مشکلات دي ، چې دروسی قواوو دراتګ نه مخکې تهداب ګذاري شوي وو ، څرنګه چې د خلکو د موکراتیك حزب دروسي قواوو میزبانان شول په همدې شکل جهادي تنظیمونه دافغان مسلمان ولس میزبانان وګرځیدل ، چې دې ته زه دجهاد خوشبختی وایم .

په تکتیکي لحاظ جهاد په افغانستان کې دوه قسمه و :

په هغو مناطقو کې چې دمکلفیت قانون تطبیق کیده په بله معنی وګړو عسکرې دوه کلن خدمت کاوه مخصوصاً په اولو وختونو کې

دقبايلي مناطقو چې عسکري مکلفيت يې نه درلوده ډير فرق درلوده، يعنې هر هغه ځا چې عسکري خدمت کړی و په جهاد کې ډير تکړه و، تقريباً دملت دوګړو په سطحه په انداختونو ، دمتوسطې وسلې په استعمال او څه ناڅه په تکتيك پوهيدل ، دغه طبقه کسان په ډير لږ وخت کې ډير ښه شول او مهمه داچې په امر او اطاعت پوهيدل نظم يې درلوده تشکيلات يې جوړکړل قوماندان او قومانداني يې ومنله ، دهوايي او زميني تاثيراتو نه په ستر او اخفا پوهيدل او ليه کومکونه يې زده وو . او برعکس هغه قبايلو او قومونو چې دعسکري مکلفيت دوره يې نه وليدلي دستر او اخفا په ماهيت نه پوهيدل او ستر او اخفا ته به يې ډاريدل ويل ، کوشش به يې کاوه چې په غټ ګروپ يو ځاى او مخصوصاً په سپينو جامو کې يو ځاى وى ، کله چې به چادوى ته دستر او اخفا خبرې وکړې دوى به هغه ته ډارن وايه او دډارن نوم به هغه ته تر آخره طعنه پاتې و، په اولو وختونو کې زه له دوى سره په تکليف وم ، ترهغې چې مې دوى ته ثابته کړه چې زه نه ويريږم مادوى ته دستر او اخفا نوم وانخيست ، داځکه چې دوى به د ډارن په نامه چاته احترام نه کاوه او دهغه خبره به يې نه منله ، کله چې به دبمباران په نتيجه کې څوك زخمي او شهيد شو ، بيا هم چندان په ستر او اخفا عقيده مند نه و، هميشه به دوى ته مادپکول خولې صفتونه کول چې سپين لنګوټې لرې کړې او پکول استعمال کړئ ، دپروت او اراضى نه استفاده ورته بې غيرتي ښکاريده .

دمينونو نه په ټوله معنى بى پروا او تر هغې چې يو تن پرې والوت دوسط اسلحې په استعمال بلد نه وو ، تکتيك يې زده نه و ، د قوماندان له نوم سره اشنا نه و ، دمنګلو قومي مشر ملك خنډو چې عمر يې له پنځو سو کلونو زيات و په پاړه چنار کې ماپه دوکتور سنت کړ

په دوی کې دجنسي آلې پوستوکی کمول معنی دغیرت کمول وو، یعني د خلکو په وینا جنسي آله دغیرت سمبول و ، پوازې او له واړه گروپ ته یې بد راتلل ډیر به خوشحاله وو چې گروپ غټ وي ، دقبایلو زګړې په ننبه ویشتلو کې ډیر تکړه وو ، په اولو وختونو کې یې له کلاشنکوف نه ټوپک ته ډیر اهمیت ورکاوه دټوپک او وسلې په ساتلو کې دقبایلو په شان په ډیرو اردو گانو کې ساری نه پیدا کیږي ، دقبایلو ډیر بد رواج چې دښمر یا دمیلمه په راتگ به یې دخوشحالتیا ډزې کولې ، ټول افغانستان ته انتقال وکړ چې خطرناکه وو .

دجهاد په شکله زما عملي اسلامي وظیفې سرا ، سره مسلکي وظیفه او مسوولیت ډیر و ، ځکه چې پوازې زه دافغانستان داړه و دغرنیو جګړو او کوماندو یا چریکي جګړو متخصص او بنیاد گذار وم .

کوماندوي او چریکي جنگونه خاص هدف او مقصد لري چې زیاتره یې زما خپل نظر دی ، کله چې په قواوو کې بیلانس نه وي ددښمن برتري زیاته وي ، قوت یې زیات وي ، سلاح زیاته او مختلف اکمالات یې ښه او ډیر وي او لنډه دا چې تناسب لکه دروسانو او مجاهدینو وي ، دمجاهدینو اکمالات دمجاهد په اوږو وي اما دروسانو په طیارو په ریل او دلاریو په قطارونو وي په داسې حالت کې هدف باید داوي چې جنگ طولاني شي ، دجمن ته جنگ قیمته تمام شي او دښمن ښه راقلاست نه وي ، دخلکو نفرت زیات شي ، دوگړو دملګریا مخینوی وشي چې ددښمن سره علاقه پیدا نه کړي ددښمن تلفات زیات شي ، باید چې دکوماندو یا چریکي قواوو کیفیت زیات شي ، یعني د کمیت یا تعدا نه کیفیت ته ارزښت ورکړ شي . هره لحظه او هر ځای باید دښمن دخطر احساس وکړي .

کیفیت په تعلیم او تربیې زیاتیږي ، سپورتي تعلیمات باید زیات

شي ځکه چي دفکر دانکشاف وسيله ګرځي هر څومره چي فزيکي طاقت زيات شي په هماغه اندازه نفر په انفرادي حالت کي سريع فکر کولای شي . عموماً جسمي ضعيف په يوازي ځان اويا په واړه ګروپ کي ښه کار نشي کولای هميشه غواړي چي ملګري يي زيات وي ،

فزيکي انکشاف زيات نه زيات کوماندويي يا چريکي سپورتونه دي ، چي له موانعو تيريدل ، دغرونو په کمرونو پورته کيدل ، له سيندونو تيريدل او همداسي نور دي ، چريکي عملياتو کي دچاودونکو موادو جوړول اويا له هغي نه بمونه جوړول دچريکي تعليماتو اساس تشکيلوي انداختونه چريکي تکتيك په الکترونکي شيانو پوهيدل او همداسي نور اهميت لري په همدي خاطر ما اولين تعليمي غندونه دمجاهدينو دپاره تشکيل او فعال کړل .

ډير زيات دمنصبدارانو جلب او استخدام جهاد ته متوجه وو ، چي په دي قسمت کي ما او زما ملګري جنرال وردك ډير منصبداران جذب او جلب کړل او په دي هکله ډير موفق و ، ددي تعليمي مرکزونو دتنظيم لپاره ډيره ګټه ور او ډير مثبت تبليغات وشول خارجيان ورته ډير دلچسپه وو ، جهاني پرسيتژ دتنظيم په همدي غندونو ډير اوچت شول .

دتنظيم په قرارګاه کي ډير عالي رتبه او تعليمافته اشخاص راغونډ شوي وو ، زموږ دتنظيم ټول نواقص داوو چي سپين ستر ګي پکي کمه وه ، ساخته ګي تبليغات کم وو ، خارجي جامي مونه درلودي .

زموږ لپاره کومکونه ډير کم وو، زموږ لپاره انکشاف او پيشرفت ډير سخت و ، خو دملګرو په زحمت کشي حقيقي نتايج زموږ ډير ښه وو په غونډونو کي مو په زرهاوو مجاهدين تعليم او تربيه کړل .

دغونډونو تبليغاتي او عملي نتيجه ډيره مثبته وه ، په نړيواله سطحه يي شهرت پيدا کړ ، ولسمل په خپل اخبار مجاهد ولس کي نوشته کړل

چې په دې کې شك نشته چې جنرال صافی پاك نفسه ، تکړه ، زحمت کشه قوماندان و او دده قطعه یا قوا په ټوله اردو حتی مملکت کې شهرت درلود ، خو کله چې وخت راغی دغه قوه نه دده په درد دوا شوه اونه دسردار عبدالولیخان ددوی دوا ړو لاسونه یې په اول کې وتړل . زما جواب په همدې اخبار په بله شماره کې نشر شو . مالیکلي وو چې دمجاهد ولس ټوله لیکنه حقیقت لري شاید زما په شخصي صفت کې یې څه زیاتی کړی وي خو نور حقیقت لري اما په یوه شي باید دی پوه وي چې زه امر منونکی وم نه امر ورکوونکی په افغانستان کې د امر ورکوونکي او امر منونکي ډیر فرق وی . دمملکت په سترو مسایلو کې صلاحیت دډیرو محدودو کسانو په لاس کې وي که ماڅه خو دسرانه اقدام کړی وای نو زه او زما کورنی،او ټول قوم به تباه او برباد و اوس هم امر منونکی یم چې په مشکلات اخته یم .

په عمومی توگه جهاد په دریو مرحلو ویشم :

اوله مرحله احساسات ، دوهمه مرحله عقل او احساسا ت دریمه مرحله عقل او رشوت ، یا عقل او بزنس دی .

په اوله مرحله کې تلاش و وار خطایي وه ، په شهادت پسې نر او ښځه په منډو روان وو ، هر چا هرڅه خرڅول چې مهمات او ټوپك واخلي اکمالات او امکانات ډیر لږ او محدود وو ، په مرکزونو کې به نوبت و وسله ټولو ته نه رسیدله او چې کله به مجاهد په رخصتی ته وسله به یې په مرکز کې تسلیم کړه ، بیا به ولاړ ، دمجاهد لوی ارمان داو چې وسله ترینه څوك وانخلی او شپه او ورځ دده په غاړه پرته وي ، په دې مرحله کې دعقل لپاره هیڅ ځای نه و ، دغه مرحله د مرسته کوونکو هیوادونو امتحاني مرحله وه ، وگورئ چې جهاد په ربښتیا سره اصلی بڼه نیسي او که نه معنی داچې که دوی تخم وښندي حاصل به ترینه واخلي

او که ځنګه ، په عین زمان دهجرت شوق هم ډیر و هر چاورته ښه راغلاست وایه تر اعظمی حده کمکونه وو ، دمجاهدینو تلفات زیات وو
ددښمن او هدف په مقابل کې پیشرفت ټول په مسابقه ووکلي په کلي قوم په قوم قوماندان په قوماندان تعصب او مسابقه وه ، چې پلار به شهید شو ، ټوپك به دهغه زوی چاته نه ورکاوه او ویل به یې چې هغه میراث نه دی زمایه شانې زوی یا ورور لري ، جمپر او بوټانو کفایت نه کاوه ، په نوبت به وسلې سره یو ځای بدلیدل . مجاهدینو به په یوه ځادر کې شپې تیرولې ، مجاهدینو ټریننګ نه و لیدلی په تکتیك ښه نه پوهیدل ، ټول به یو ځای و او موضع ګانې یې نه جوړولې چې دهاوان یا دتوپ په یوه مرمی به یې ډیر تلفات ولیدل .
دوهمه مرحله دعقل او احساساتو ګډه مرحله وه ، دمجاهدینو غنډونه جوړ شول ، مجاهدینو ټرایننګ ولیده ، له یوې خوا د دوسلو په استعمال حاکم شول له بلې خوا وسله مخ په ډیریدو وه، جبهاتو عسکري شکل اختیار کړ ، تشکیلات جوړ شول قوماندانان غټ واره تعین شول
مرکزونه جوړشول په جبهاتو او مرکزونو کې وظایف معلوم شول . فتوحات ډیر وشول وسلې ډیرې غنیمت شوې ، په لارو باندې مجاهدین حاکم شول په دښمن لارې بندې وې او په همدې خاطر ددښمن اکمالات په طیارو شول او ګران ورته تمام شول ، په دې مرحله کې دښمن ډیر زیات ځاني او مالي تلفات ولیدل .
هغه خارجي هیوادونو چې دمجاهدینو رهبرانو ته یې چندې او کمکونه ورکول ، پرهغو به رهبرانو وسله اخستله او دمجاهدینو مصارف به یې کول لنډه داچې په دې مرحله کې جهاد خپلې عالي مرحلې ته ورسید .
هر هغه تکتیکی تغیرات چې به په دښمن کې راغلل مجاهدینو به په ډیره لږه موده کې دهغې مخه ونیوه دښمن دمځکې موفقیت له لاسه

ورکړه په هره لاره چې ولاړل ناکامه شول دښمن ناځاپه ټول ځمکني حرکات بند کړل او ټوله طاقت یې په هوائي ضرباتو ولګاوه دا مې حالت راغلل چې نژدې و جهاد له سقوط سره مخامخ شي دشپې او دورځې حرکات ودریدل حتی په مرکزونو کې د ننوتلو امکانات نه وو . دخوست په لویو عملیاتو کې چې اته دیرش ورځې یې دوام وکړ او دښمن دحقاني صاحب مرکز ژوره ونیوه په څلیریشت ساعتو کې یوه لحظه نه وه چې آسمان بې طیارو او سی یو ددښمن په دیپوګانو کې زاره بمونو خلاص وو ټول پنځه سوه کیلو ګرام بمونه یې تازه اکمال کړي وو .

ددې جنګ په اخر کې ما دامریکا سفر وکړ له جمهور رئیس ، دحکومت له ټولو دیپارټمنتو سره مې ملاقاتونه ونیول او دامې ورته په صراحت سره ووېل چې که تاسو غواړئ چې افغانستان روسانو ته تحفه ورکړئ دا لاره نه ده او که تاسو غواړئ چې روسانو ته افغانستان ویتنام جوړ کړئ داېې لاره هم دا او که غواړئ چې افغانان په جهاد کې موفق شي دا هم دغه لاره نه ده ، تقریباً ټولو په کلکه تپوس وکړ چې کومه لاره سمه ده زما جواب یو و چې ستنګر راکړئ ، او که نه جهاد له سقوط سره مخامخ دی ، کله چې په کانګرس کې حاضر شوم او تقریر مې وکړ اکثریت داحساساتو لاندې راغلل او ډیر تعداد کسانو له مخالفت سره مخامخ شوم دوی داویل چې ستنګر دقیقه تکنالوجي ده ، افغانان ددغې داستعمال کفایت نه لري ، روسان به په غوسه شي او جنګ به ډیره جدي بڼه اختیار کړي دریم اعتراض دا و چې ستنګر به زموږ ددښمنانو لاس ته ولویږي او زموږ پر ضد به استعمال شي ، ما ورته وویل چې ماغزه دخدای دادي او خدای یو ادی چې تاسو هغه استعمالوی نو موږ یې هم شو روسان پر موږ ګلاب نه راباروي چې دقهر او غوسې په وخت کې به بل څه شي ، هغوی خپله ټوله وسله پر موږ تجربه کړه او داهغوی اخري

زور دی ، وسله افغانانو ته دناموس اهمیت لري انشاالله چې هغه به له لاسه ور نه کړي .

دستهنکرو په هکله درئیس جمهور ددفتر ته مکتوب راغی ، چې ستهنګر به مجاهدینو ته اکمال شي تا په ښه وخت کې دا موضوع را په مخه کړه ستاسو دتنظیماتو بعضې مشران راغلی وو ریاني زما سره ولیدل خو دستهنګرو په هکله یې څه ونه ویل ، بیا مې ورته دمننې او شکریې مکتوب ورواستاوه ، له دې نه علاوه دلرې ویشتونکو ستهنګرونو او دشپې لیدونکو وسیلو چې ما اجرات وکړل دهغې تفصیل شخصي کیږي او داصلي موضوع نه لرې کیږم نو دهغې دلیکنې نه صرف نظر کوم .

دستهنګرو په راتګ بیا جهاد ژوندی شو ، مجاهدین دستنګرونه راووتل او په حملاتو یې شروع وکړه دستهنګرو نه ترمخې سلم اووه او یلو پیاپې وو چې ناکامه شول او هیڅ نتیجه یې ورنه کړه .

په دې مرحله کې عملیات پلان کیدل او حتی د اتحاد په سطحه ډیر موفقانه اجرا کیدل ، په غټه سویه دښمن ته تلفات ورسیدل .

دریمه مرحله چې دې مرحلې ته زه دعقل او رشوت مرحله وایم :

په دریمه مرحله کې دګټو سوال ژوندی شو ، تقریباً دوسلو او مهماتو او نورو لوژستیکي اکمالاتو او دجهاتو دمصارفو پیسو اختیار دتنظیمونو واخیستل شو ، پاکستاني مقاماتو راساً له جهادي قومانданانو سره رابطه ټینګه کړه .

دهغې وخت نه رهبرانو دحقیقي جهاد مخه دسیاسي جهاد لورې ته وګرځوله دامفکوره ورته پیدا شوه چې دسیاست مبارزه بې پیسو نه کیږي او یا شاید دا فکر پیدا شو چې دغه بې حسابه او بې مسوولیته پادشاهي چې دنړۍ په تاریخ کې یې ساری نه دی تیرشوی دا به تر آخره

نه وي نو دملنگی بادشاه کیدل او بیا په خپل لاس ځان ملنگ کړل دابه ډیره ستره ساده ګي وي نو له ځانه سره یې دافیصله وکړه چې پیسې کولای شي چې څه ناڅه دبادشاهي پوزیشن ژوندی وساتي . دځو کلونو ذخیره پیسو یې خیتی واچولې او په بانکونو ورداخل شوی ، قوماندانانو ته هم په خپل حساب دوه فکره پیدا شول ، هغو قوماندانانو چې دجهاد په کلو کې یې دښمني ګانې کړې وې دخپل ځان او د خپلې کورنۍ دامنیت دساتلو لپاره باید په راتلونکي کې پیسې ولري چې مصارف پوره کړي دوی هم پیسو ته کش ورکړ او بل ګروپ قوماندانانو چې دپخوانه دغریبۍ ژوند درلوده اوس دښه ژوند په خوند پوه شول دوی ته هم دافکر پیداشو چې ښه کورښه بزنس باید ولري او ځوانه ښځه هم ضرور ده ، چې دکلونو خسته ګي رفع کړي او ښه راتلونکی ژوند او دهغې په خوند پوه شي ، هغوی هم دوپېلومات په نامه بکسونه زیات کړل ، څه خوبې په دې فکر چې روسانو سره مو په ټوپکوجهاد وکړ دغربیانو سره به دچلم په نې چې وایی یا دمورتی دی او یا دچلم نی ، دچرسو او تارباکو ملګرتیا شروع کره معنی داچې دډالرو په حساب دملیونو کښته او پورته ورته کافي نه ښکاریدل ، مجاهدینو هم په خپل چوکاټ کې دسر لنګیو ته چیمونه ښایسته څپلیو ته ضرورت پیدا کړ څه ناڅه مصارف کوروته هم لازم شوه په پای کې دوسلو خرڅون مهمات او لوژستیکي مواد وخرڅول کافی نه وو ، بیا نو دعملیاتو خریداو فروش شروع شو ، مثلاً هغه مصارف چې په جلال ابادکې وشول ، که دغه پیسې نقدې ورکړ شوی وای یې وز او ورزه جلال اباد تسلیم و همداسې په نورو مناطقو کې له دې نه بدترې لوبې وشوې ، په دوست او دښمن کې دوه نوی فکرونه پیدا شول ، بعضې قوماندانانو دافکر وکړ چې د ددښمن بوازې سر وهل کفایت نه کوي ، باید ددښمن سر او مال

دواړه ووهل شي . لکه چې وايي ددښمن سر ووهۍ مال تالا ، دښمن هم په خپل چوکاټ کې داسرچ وکړ چې دهر قطار په تیریدو سره په بسلو کې دپنځوسونه علاوه له منځه ځي ، راځه دیوې عرادې مصرف ورکړه ټول قطار به سلامت تیر شي ، دغه دوه نوې سوچونو او فکرونو دوست اودښمن سره نژدې کړل اوبتې پیسې پکې بادشوې ، په هغه منطقه کې چې دیوه سړي دوه زامن په تیپام بم وسوځیدل او شهیدان شول او دهغوی سوځیدلی اتدفیلد ټوپك لاتر اوسه له ماسره و دهغوی سپین ږیري پلار ټوپك واخیست او دجهاد په صف کې ودریده، خو کله چې دپیسو خبرې شروع شوې، ما اوسید محمد ګیلاني خلوښت شپې وکړې ستونی مو له ډیرو خبرو بندشول توزیع ګانې مو درې درې ځله وکړې په چناق دلخواه مومصارف ورکړل خو چا دخدای دپاره هم یو ډزونه کړ .

زما مطلب دادی چې ثابت کړم چې جهاد دخپل اصلي مسیر نه تغیر وکړ داحساس پر ځای له عقل سره بزنس یوځای شو .

کله چې دقوماندانانو شوری جوړه شوه ، نوی پروګرامونه او نوی پلانونه جوړ شول ، جهاد یو ځل بیا ژوندی شو سیالي او رقابت شروع شو او ډیر موفقانه څه ناڅه په اتحاد سره پر مخ ولاړ ، لوی ښارونه فتحه شول، ستړې منطقې دمجاهدینو لاس ته ولویدې مجاهدینو سره جوړ او اکمالات عصري او تیزشول حتی له حکومت نه دمجاهدینو وسایط نوي او عصري وو ، په ډیرو ځایونو کې د مجاهدینو سرك او لارې ددښمن دسرکونو نه ښه وو ، دځینو قوماندانانو نظامي طاقت ددښمن دفرقو او قول اردو ګانو له سطحې نه لا اوچت و، دکمیت اودکیفیت په لحاظ اکثر قوماندانان له دښمن نه ډیر ښه وو په عجیب هم دروسانو کمك بند شو .

جهاد دګوریلایی مرحلې نه دولتي شکل اختیارکړ او په سترو جبهاتو

جهاد کیده . دکونړونو ، جلال اباد ، خوست او دګردیز عملیات ددوه مملکتونو اردوګانو ته شباهت درلود . دډیرو قوماندانانو دفتر داري امور هم دنجیب دنظامي دفتر دارۍ نه کم نه وو ، دغه سبب شو چي دروسانو ملاماته شوه او په نظامي ماتي سره له افغانستان څخه ووتل .

# دجلال آباد جګړه اوشکست

که سړی وغواړي چې دافغانستان داوږده جنګ تاریخ ولیکي نو په ډیره اسانتیا دهر ولایت دهرکال جګړه یو کتاب جمعاً تقریباً ٤٣٥ کتابونه کیږي چې له سیاسي تحولاتو او تغییراتو او درهبرانو له بیوګرافیو سره ٤٥٠ کتابونو ته رسیږي او هرکتاب به یې خپل ځانته ډیر اهمیت ولري .

زه غواړم یوازې دجلال اباد جګړه دجګړې اصلي هدف او مقاصد او دمجاهدینو دشکست عوامل او موجبه اسباب چې نړیوال شهرت یې پیدا کړی و په ډیره لنډه توګه ولیکم .

دجګړې له شروع نه څه موده تر مخه دځاځیو ، ازرې او حصارك په لاره خوګیانو ته ولاړم . دملي اسلامي محاذ له قوماندانانو سره مو دجګړې احضارات تکمیل کړل ، په ګډه سره سرخرود ته ولاړو . دتنظیم غټ قوماندانان لکه حاجي زمان ، حاجی ظاهر ، عبدالمجید خان ،

قاضي سميع الله ، محمد اصف خان او دنورو تنظيمونو قوماندانان لکه مولوي زاهد ، خميني او نورو سره يو ځای مو شوری تشکيل کړه . له ډيرو مجالسونه وروسته په توافق مو دقرار گاه او دقوماندی مسولين تعيين کړل ، اهداف وټاکل شول او ثقيله وسلې ځای پرځای شوې ، دهجوم گروپونه او قوماندانان وظيفه دار شول . دښمن دجلال اباد په اوسيدونکو دهجرت بنديز ولگاوه او اوسيدوني يې برنته کړل . دعملياتو په نتيجه کې ما وليدل چې درنو وسلوخپله وظيفه اجرا نه کړه ، مشترکه مساعي نه وه ، خبرې ډيرې او عمل کم و ، اتحاد عملي بڼه نه درلودله .

زموږ قوماندانان مخصوصاً ضابط ظاهر ددښمن دخرکارانو دپوستو په کلا گانو کې دهجوم له گروپ سره بندپاته و ، چې دنورو پوستو دهاوانونو په انداختونو زيات مجاهدين دقوماندان ظاهر په شمول زخميان او په ډيرې سختۍ له محاصرې نه خلاص شول . ديوې مياشتې په شاوخوا موده کې چې دسرخرود په جگړو او عملياتو کې موجود وم ، په عمومي توگه دتوجه وړ څو شيان منفي او مايوس کننده وو . له ټولو شوری گانو ، تعهداتو ، توافقاتو سره سره دتنظيماتو ترمنځه همکاري او اتحاد صادقانه نه و ، هر چا دبل په ناکامۍ کوشش کاوه ، رقابت او هم چشمۍ يو له بله سره په پيشرفت کې نه وه ، بلکه ټول کوشش داو چې يو دبل پښې ووهي ، او دهغه دپيشرفت او موفقيت مخنيوی وکړي . بله ډيره مهمه موضوع دکابل او جلال اباد عمومي لاره وه . په نظامي اصولو کې پر يو ښاردفاتحانه جگړې د شروع نه مخکې ډير لوی او مهم شرط ددښمن اکمالاتي لارې بندول وې . دښمن بايد داصلي تعرض او هجوم نه مخکې دمختلفو اکمالاتي بنديزونو سره مخامخ شي . وسله يې بايد مهماتو ته محتاج

وي ، وسايط يې بايد روغنياتو او فالتو پرزه جاتو ته محتاج وي. عساکر بايد دخوراکي موادو په قلت مواجه وي ترڅو دښمن دمختلفو فشارونو دلاندې معنويات له لاسه ورکړي او لږ مقاومت په نتيجه کې دتسليمي فکر ورته پيدا شي. په دې جګړه کې داول نه تر اخره پورې عمومي لاره خلاصه وه ، ټول اکمالات په عادي شکل سره جاري وو.

هغه ګروپونه چې دکابل او جلال اباد دلارې بندولو وظيفه دلرووډير ښه فريبنده تکتيک يې استعماله وه . دشلو ورځو نه تر يوې مياشتې پورې به يې لاره ډيره کلکه بنده کړه ، او داسې به ښودله چې دخره بار هم نه تيريږي له خپلو کسانو نه به تلاشي اخستل کيدله او ستره آوازه به خپره شوه ، چې لاره بنده ده او ټول به دلارې په بنديز مطمين وو ولې هغه شپه چې ددښمن به ورته ضرورت و ، دټك او ټوک په بهانه به لاره خلاصه شوه او قطار به تير شو.

دقطارونو په تيرولو کې دښمن وروسته ډير هوښيار شو.

په اولو وختونو کې به په سلو کې دپنځوسو نه زيات قطار دمجاهدينو په کمين برابر او تباه شو . خو په آخرو کلونو کې به يې ديوه ټانك نقدي پيسې دلارې قوماندان ته ورکړې او ژوندی قطار به تير شو او که نه دښمن ته کمين نيول او ددښمن دقطار له منځه وړل دمحاربې ډيره آسانه طريقه ده ، چې دښمن ډير درانه تلفاتويني .

بله غلطه خبره داوه چې په مخابرو کې راپوررونه او دراډيوګانو مصاحبو کې په عمومي توګه دروغ ډير وو . نظامي تبليغات او دروغ ډير فرق لري . په مشترکه عملياتو کې چې واحده قوماندانه نه وي ، ددروغو ويناوې او غلط بيان باندې غلط نظامي قرار ورکول کيږي چې غلط نظامي قرار دتباهۍ سبب ګرځي .

دمثال په توګه : دمولوي خالص دقوماندان په قول دبي بي سي په

خبرونو کې وویل چې ددښمن دقواوو چپرهار پوستې ، دهډې تر قارم پورې فتح شوې دی . په همدې استناد دسرخرود نه غازي آباد ته دراتګ په وخت کې ما خپله لاره لنډه کړه ، خو کله چې چپرهار ته ورسيدم ، دپوستو نه دانداختونو په نتيجه کې زما يو ډګرمن زخمي او يو خلمی تورن شهيد شو ، په تيښته او په ډير بدحالت دمنطقې نه تير شوم .

حيرانيدونکې خبره خو داوه چې حضرت صاحب صبغت الله مجددي دسياست نه په يوځل ديو مارشال په صفت اعلان وکړ چې دراتلونکې اختر لمونځ به په جلال اباد کې کوئ او بيا به خپلې دارالخلافې ته دپيښور نه جلال اباد ته انتقال ورکوئ ، دغه اعلان داول ځل لپاره دنړۍ په جنګي تاريخ کې درج او قيد شو ، داځکه چې به جنګونو او جګړو کې دفتوحاتو زماني وخت هيڅوك نشي تعينولی ، حتی ددښمن تر تاثير لاندې د قطار درسيدو وخت نشي تعينيدلای ، له اعلان سره سم جلال اباد نړيوال پرستيژوګاټه . دنابلدۍاو نا اشنايي په صورت کې هغه چاچې مجددي نه پيژنده ، دغه اعلان ته يې په نړيواله سطحه ستر اعتبار ورکړ ، بعضو داويل چی ددې اعلان دتحقق په صورت کې به لوی ننګرهار آزاد او دمجاهدينو او دنجيب دقواو ليکې به دلته بند له غرونه تيرې شې .

چی په هغه صورت کې به دکمونستي نظام سقوط حتمي وي .

ددې اعلان متصل دملګرو ملتونو هيئتونه په ډيره بيړه راغلل څو چې داعمار مجدد لپاره په جلال اباد کې دفترونه خلاص کړي . کمکي موسساتو په پيښور کې دخپلو دفاترو دکرايی قرار دادونه فسخ او قطع کړل او کډې يې دجلال اباد په لور رواني وې . دافغاني سونو او دکميټو افغاني مشران له مجاهدينو سره داخل ته ولاړ هر چا

داکوښتن کاوه چې یو له بل نه مخکې وي ، نظامي متخصصین په دې اعلان ډېر حیران او خفه وو ، په عمومي توگه دغه جگړه تحمیلی ، عاجله او ناگهاني وه ، دداسې جگړې لپاره پلاتونه احضارنه وو . جنگي احضارات نه وو . زما لپاره تر آخره داسوال وچې د دغې جگړې لپاره دانظر له کومه او دچا له خوا راپیدا شو ؟ ناخواسته ، نافهمیده جلال اباد ته نړیوال پرستیژ ورکړ شو او دښمن هم دغه پرستیژ قبول کړ دوا ړه خواوو ته دجلال آباد جگړه چلنج او ننگ وگرځیده او د مسابقې شکل یې اختیار کړ .

دښمن دجلال اباد دښار په دفاعي کمر بندنو کې دهم چشمي او رقابت اصول عملي کړل او دهر قوم ملیشه یې دښار همغې لورې ته ځای پر ځای کړل . حتی کلي په کلي دملیشه وو مسولیت سره جلا و . هغه جنگي اسیران چې دمولوي صاحب خالص دحزب له خوا قتل شول ، نړیواله اوازه خپره شوه او دمجاهدینو پرضد بدبیني پیدا شوه ، دجلال اباد په قواوومخصوصاً ملیشه وو یې ډېر تاثیر وکړ اودوی ته یوازې او یوازې دمرگ او ژوند سوال مطرح شو او بس . دښار په شمال کې دکامې پله نه تر گمبیري غرونو پورې دکنړونو ملیشې ، دښار په جنوبي سیمه کې دهدی فارم او چپرهار شاوخوا دچپرهار او شینوارو ملیشې دښار په شرقي سیمه کې تر خوشگنبد او سمرخیلو پورې دمومندو ملیشې او دښار غربي لورتر درونټې پورې دسرخرود خوگیاڼو او دتکاو ملیشې ځای پرځای شوې وې .

دقومي او ډېر معرفت او شناخت په خاطر دجلال اباد دشمالي جبهاتو عمومي قوماندان په صفت انتخاب شوم او منطقي ته ولاړم دتگ په لاره کې یوه شپه جنرال وردگ کره پاتې شوم . په همغه ورځ دوردگ په قرار گاه بمباران شوی او د همه دقرار گاه تکړه منصبداران زخمي شوی وو .

په هغه شپه ددښمن فشار دفارمونو په منطقه ډير زيات و او ټوله شپه داناختونو له لاسه خوب او راحت نه کيده .

په نورګل کې مې دملي اسلامي محاذ دکتړونو ولايت قوماندانان راټول کړل او شورى مو تشکيل کړه ، په ټولو مسايلو موبحث او مذاکرات وکړل او په نتيجه کې په توافق ورسيدو ، دجګړې لپاره مې خاصه ډيپو د دره نور د سورڅ په کلي کې جوړه کړه . خپله قرار ګاه مې دګمبيري او شګې سرحد شيطان غونډ ته مخامخ داول خط له مجاهدينو سره تعينه کړه ډيرو داګمان کاوه چې زه زړه وريم خو حقيقت دادى چې هر څومره دښمن ته نژدې وي ددښمن ديمباران ، توپچي او دراکټوتاثير کم وي او حتى نه وي او ددښمن دحقيقه وسلې نه ځان ساتل آسانه وي .

کله چې په جنګ نه و اوبايه شورى ګانې وې نوزه به داملي کلي ترڅنګه وم . ځکه چې داوبو شرايط يې ښه وو . تر هغې وروسته چې دشورى ګانو او جرګونه فارغ شوم په عملياتو کې له اول نه تر آخره چاوفارنه کړه . تنظيماتو ګڼه مساعي خولاپريږده چې دهرتنظيم دخپلو مجاهدينو ترمنځه همکاري نه وه .

په دې منطقه کې زه له دوه ډيرو سختو مشکلاتو سره مخامخ وم . مخصوصاً دخيوې اوشګې دسقوط په وخت کې دوهابيانو دبدو اعمالو ترخې خاطرې موجود وې ، پ[illegible]دې خاطر چا دمجاهدينو سره همکاري نه کوله او برعکس ددښمن دجاسوسي فعاليت ډير شديد او ډير موفق و ترهغې چې ماخپل ځان عياراوه نزدې و چې له منځه ولاړ شم .

دوهم مشکل په ګمبيري کې داول خطر مجاهدينو ته داوبو رسول وو . په پلاستيکي ډبو کې به مو په لاريو کې اوبه اکمالولې ، موږ ته دهرشي اکمالول ګران وو ، خو کله چې به مو هرحه تکميل کړل ، بيا

دزره ور ډېرورېداکول ګران و . دګمبیري په لوخ ډاګ کې به همېشه انداختونه او بمبار و .

قوماندان ظاهرشاه شهید او تورن عبدالوهاب مشهور په بابا ډېر خطرناکه کارونه راته اجرا کول . او عموماً دغه شان ډېرووری به دوی کوله ، موږ به هره ورځ دوه ځله او که نه یو ځل حتمی اوبه اکمالولې . هغه ځوك چې بلد دي پوهیږي چې دګمبیري دشته څه معنی . دغنډلاتو ، مارانو ، لړمانو ، ګرمۍ ، میاشو او مخصوصاً داوبو دمشکلاتو تکلیف ودښمن سره له جګړې نه ډېر زیات وو .

دجلال اباد په جګړه کې دکنړونو دپورته درو مجاهدین دجګړې لپاره ډېر شوقي نه وو . په عمومي توګه هغوی به داویلې چې دوی خپل ولایت آزاد کړی دی ننګرهاري دې په خپله خپل ولایت آزادکې ، بعضو قوماندانانو له مانه موادواخیستل او اکمالات یې وکړه مګر دجګړې په خط کې داخل نشول او بیرته ولاړل . په دې باب دهغوی خبره درسته نه وه داځکه چې جلال اباد ته داعلان سره پرستیژ ورکړ شواو جهاني توجه یې ځانته جلبه کړه او دښمن هم دټولو امکاناتو نه په استفاده تقویه کړې و .

لکه څرنګه چې موتر محته وویل : په خیره او شکې کې عامو خلکو چې دحکومت څخه ته تللی وو ، له مجاهدینو سره همکاري نه کوله او انتقام په غرض به یې له حکومت سره صادقانه خدمت کاوه ، په همدې خاطر ددښمن دجاسوسۍ شبکو فعالیت ډېر و او اکثر به یې زموږ حرکات تحدیدول ، او دښمن به ډېر ژر دمجاهدینو له احواله نه خبر شو .

په قرار ګاووکې زما ملکي اکثراً مسلکي ، رسیدلي منصبداران وو ، موږ به دهمیشه لپاره دددښمن دطیارو مخابره په ۵ ۱۰ اف ام کې اوریدله او زموږ دډېر لږ تغیر نه به خبر وو ، موږ به هم دبې سیم په واسطه

ددښمن دبمباران خبر جبهاتو ته ورساوه . يوه ورځ چې يو سپين ږيري تګاوي ، دجنرال کاوون د درونښي دقوماندان له خوا زما دجاسوسۍ لپاره تعين شوی و ، څو چې ماپه لاس ورکړي او يا مې له منځه بوځي ګرفتار او دتحقيق لاندې مو ونيوه . دشپې ديوولس بجو شاوخوا محمد علی خان ، لاجورخان ، حيات الله خان ، بابا تريته تحقيق کاوه چې دوه جټ الوتکې زموږ په سر راغلې لاندېنې پيلوټ پاسنې ته وويل چې جنرال صافی هم دلته دی ټول ملګري دې خبرې ته حيران شول .

پورتنی پيلوټ وويل پوه نشوم تکرار کړه ، بيايي وويل چې جنرال صافی داملی په کلي کې دی . بل ورته وويل ، چې سبا به ورسره ګورو . په هغه شپه موږ له منطقې نه يو فاصله لرې شو او کلي ته موچې نوی مهاجر ورته شاته شوی وخبر ورکړ چې سبا شايد بمبار وشي . دوی بايد خبر وی او له محل نه لرې شي ، سبا سهار اووه بجې لا پوره نه وې چې دوه طيارې ډير سخت بمباران وکړ . ډير زيات خلک زخمي او شهيدان شول ، ډيره مالداري له منځه ولاړه ديوې ښځې درې ماشومان په يوځای شهيدان شول . موږ به دهميشه لپاره به کښت وو ، ځکه چې محل به موږسوا شو او دښمن به زموږ په خاطر تورو خلکو ته تکليف ورکاوه . دمجاهدينو بعضې قوماندانانو هم له دښمن سره لاس درلودلې او ډبل کراس يعنې دوه اړخيزه وو . موږ به ددوی مخابرې کشفولې دجلال اباد شمالي څواته دکنړونو په لور په اولو ورځو کې دجګړې جوش ډير زيات و . څو ګله چې دښمن داهل حديثو مرکز او دجګړې داړلو خط بمباران کړ او په څو دقيقو کې دسلوګستانو نه زيات مجاهدين شهيدان کړل ، ددې منطقې دمجاهدينو معنويات ډير خراب شول . داهل حديثو غنيمې او ډير زيات سامان چې دعبدالخيلو اود کامې پله ترمنځه په زړه لاره وو دبمبارانه سره دکنړ غنيمې ته ولويد .

دمنطقي ثقيله وسایط دشهیدانو او زخمیانو په تخلیه نه رسیدل .
دجلال اباد په جګړه کې هیڅکله څلورو سمتو نو په ګډه سره په یو وخت متحد عملیات ونه کړل . که شمال به عملیات کول جنوب به خاموش و او که شرق به عملیات کول غرب به خاموش و .

په سمتو نو کې هم دتنظیمونو ترمنځه اتحادنه و ، هیڅکله په یو سمت یا ستقامت کې دټولو تنظیمونو مجاهدینو په ګډه سره په یو وخت عملیات ونه کړل . حتی دیوسمت دیوه تنظیم مجاهدینو په یو وخت کې مشترك او متحد عملیات نه کول ، چې دادمجاهدینو ګناه نه وه . ددې مسایلو علت اواسباب به دجګړې دناکامۍ تر عنوان لاندې راشي . بیا هم دورځو په تیریدو سره اوضاع دمجاهدینو په نفع نه کیده او ددښمن حوصله په سر رسیدلې وه ، داځکه چې دبرلین دوهمې نړیوالې جګړې له ظلم ډیر زیات ظلم په جلال اباد او دهغه په اوسیدونکو وشو ، موږ په خارجی خط کی ازاده او دسمن په داخلی خط کی زندانیان وو . دجګړې په جوش کې زموږ اکمالات قطع شول او مخصوصاً دمهماتو نه فاقه شوو او لوی جواب داوو چې دمهماتو کشتۍ تر اوسه کراچۍ بندر ته نه ده رسیدلی . دغه کار دجګړې دناکامۍ اصلي علت او موجب اسباب تشکیلوي .

له بلې خوا ترهغه حده چې ماته معلومات دي ، هغه مصارف چې دجلال اباد په جګړه کې وشوه ، که دهغې نیمایي نقد ورکړل شوی وای حاجت به دجنګ اوخرابۍ نه و په خپله رضا اورغبت تسلیمیدل .

دټول افغانستان ، مخصوصاً دجنوبي افغانستان او بیا خاصتاً جلال اباد ، خوست ، او ګردیز شهیدان چې راپه یادشي او بیا دمشرانو حالاتو ته وګورم چې که ددوی مرګ روانه وي تو دچابه روا وي ؟

کله چې اکمالات بند شول ، ه پیښور ته راغلم دبي بي سي او امریکې غږ پښتو سرویسونو راسره مرکې وکړې . زما او دجنرال وردګ مرکې دمنځنی ختیز یوه معتبره عربي دالوطن په نامه مجله کې چاپ شوې . سلجوقی دتنظیم سیاسي رئیس اعتراض داوو چې زما او دجنرال وردګ په نظامي نظریاتو کې ولې اختلاف دی او په تنظیم کې باید وحدت نظر وي چې داخبره دنظامي ، اصولو مخالفه ده .

## دجلال اباد دجګړې دماتې موجبه او اسباب :

زما په عقیده له شورویانوسره دجهادپه تیر کلونو کې زموږ موفقت څه ناڅه بې نظمي ، خودسري او خودکامي وه په نظم او دسپلین موږ له یوی منظمی اردو توان نه درلود . خو دشورویانو له وتلو سره عمومي وضعیت تغیر وکړ داطراف او غرونو اودښتو نه ښارونو ته نژدې شو چې ستر بدلون ته ضرورت و . موږ داکاروته که او منظمې جګړې ته مخامخ شوو . په جلال اباد کې مو ماته وخوړه .

۱- موږ ډیر کلونه ګوریلایی او چریکي جنګونه وکړل او دوخت په تیریدو سره مجاهدین بلد شوی وودجلال اباد دجګړې یو ناڅاپه جبهه یې جنګ ته برابر کړو . جبهه یې او ګوریلایي جګړه ډیر فرق لري ، چې موږ احضارات نه درلودل .

۲- مجاهدین دجبهه یي تکتیک سره بلد او اشنانه وو .

۳- مجاهدین دغرو او دښتونه په یوځل له ښاري جنګ سره مخامخ شول .

٤- دجبهه یي جنګ اکمالات نه وو .

٥- واحده قوماندانې نه وه .

٦- دجبهه یي جګړو تشکیل نه و .

۷- دجبهه یي جګړو انضباط او دسپلین تعلیم او تربیه نه وه .

۸- لاري بندي نه وي او ددښمن اکمالات جاري وو.

۹- جګړه په واحده قومانده دخلور وخواوونه شروع نه شوه.

۱۰- بې ضرورته جلال اباد ته پرسخيو ورکړشو.

۱۱- صنميمت او مشترکه مساعي نه وه.

۱۲- ددښمن دعليشه قواو ترمنځ ډېټلي ، ننګ او غيرت مسايل تشويق شوي وو . .

۱۳- قاعدتاً بايد دمتعرض قوت دمدافع نه لږ تر لږه دري چنده وي ، چي زموږ او ددښمن دقواوو توازن مخصوصاً ددرنو وسلو او هوايي برعکس اوسرچپه و.

۱٤- په چريکي او ګوريلايي جګړو کې چې ( ووهه او وتښته ) تکتيک کې زيات نه زيات ګشت او حرکت وي . په جبهه يې جګړه کې حوصلې ته ضرورت وي ، چې ګروپونه په مياشتو او مياشتو په موضع ګانو کې پا ، شي . زموږ مجاهدينو دغه حوصله نه درلودله.

۱۵- زموږ او ددښمن ترمنځه په افکارو او اذهانو کې فرقونه پيدا شوي وو . دښمن ته يوازي دمرګ او ژوند سوال مطرح و ، خو په مجاهدينو کې دمسلح جهاد ترڅنګه دنقديو او پيسو جهاد افکار تشويق شول . بعضو خو لادا روايت او فتواګانې پيدا او جوړه کړې وه ، چې ددښمن سروهلي او مال تالان . يعني ځينو قومندانانو دخپل صف پيسو باندې قانع نه وو او ددښمن نه يې همجاره سازي کوله.

۱٦- يو تعداد قوماندانان دخپلو مناطقو او نږدې ښارونو په ازادۍ خوشحاله نه وو ، ځکه چې بيا دعربو جګړو ترڅه پهانونه پاته کيدله.

۱۷- بعضي احزابو دجلال آباد آزادۍ ته اشتها نه درلودله. ددوی اهداف او مقاصد بيل وو.

۱۸- دجلال آباد  په جګړه کې هیڅ افغاني مقام مسؤلیت نه درلود بعضې رهبران حتی دشهیدانو د  جنازې مراسمو او فاتحو ته نه ورتلل .
۱۹-  دجلال آباد په جګړه کې ماته معلومه او ثابته شوه ، چې دتنظیمونو زیاتوالی  دسوق او اداري لپاره ډیر خطرناك وي . مثلاً ماشوی داستادو سره ونیوه چې ددښمن جاسوس و ، څو دهغه خپلوانو او اقاربو به بل تنظیم ته واسطه وکړه او مکتوب به راغی چې فلانی  نومی زمونږ ارتباطي او سرپه لاس مجاهد دی او دا باید  ژر ترژره ازاد شي .
دبعضو په مکتوب کې به پوره لنډه جمله علاوه شوې وه چې که فوراً آزاده نشو نو دنامطلوبه  عواقبو مسؤلیت به دهغه‌تنظیم په غاړه وي .
۲۰- دجلال آباد  په جګړه کې دښار دوګړو له خوا له مجاهدینو سره هیڅ همکاري نه وه مخصوصاً دشمال لورته بدې خاطرې وې .

# پاکستانیان او دافغانانو جهاد

هر څه ته تغییر ورکول کیدلای شي ، خو ځینو طبیعي فورمولو نو ته تغییر نه ورکول کیږی ، معنی داچې هر هغه څوك چې د خپل ګاونډي کورته دخپل کورنه صادق و هغه خپل کورته خاین دی . هر هغه څوك چې ګاونډی هیواد ته صادق وی خپل هیواد ته خاین بلل کیږی . دهمیشه لپاره ګاونډي هیوادونه پخپلو کي سره منافع لري دیوه قوت دبل په ضعف کې لیدل کیږی . ژوند ټول تجارت دی که څوك لایق وي نو برخه پوره اخلي او که نه سرمایه هم له لاسه ورکوی . دیو هیواد مداخلي په بل هیواد کې طبیعي عمل دی . په غربي هیوادونو کې ډیر ځله مخالفتونه جوش وکړي او دښمنۍ ته ورسیږی خو دهغوی مشران ټول مسایل په معقول سیاست حل کړي . په دې خاطر دیو هیواد په منیوسو وګړی یو سړی دخپل مشر په توګه ټاکی ، زه بیا هم وایم چې دیو هیواد معقول زعامت دقلعې دیوال ته شباهت لري ، که دیوال اوچت وي څوك نشي اوښتلی او که دغررو باندې وی هر څوك ځي او

راځي ، زموږ له هیواد نه بانډه جوړه ده نو دچانه ګله په کار نه ده .
چې څه کړي هغه به ریبي . دپښتوانیو داعمالو مجازات موږ ولیدل .
دشوربازار په بابای خودی کې وایې ګل ورو په نامه تکه توره چیچکې
ښځه وه چې پژه یې په مخکې نه ښکاریدله خو په هرې ښکلې ښځې
پسې به یې دبدرنګي په نامه مسخرې کولې . سیالي او رقابت په کار
او عمل کیږي نه په خبرو .
زه دپښتوانی پاکستان او پاکستانیانو سره بلد نه وم . تعجب کوم چې
زموږ دوخت بعضي مشرانو په کوم دلایلو او مجهبه اسبابو پاکستانیان
دڅه او څه په نامه یادول . دابه یو لورته پریږدو چې دپاکستان په
هرګوټ کې داوبو نل برق او ګاز شته ، هر پاکستاني‌ته دپیو چای
رسیږی ، هر پکستاني په جامو پټ دی . زموږ په پایتخت کې پوره
برق تیلفون او داوبو نلونه نه وو . نیمایي تبار یانو به سوړ ژمی
دنانوایی په ایرو تیراوه . دپاکستان دریکشا ډریور یا دمنډوی
کراچیوان په انګلیسی ژبه لیکل او لوستل کوی . موږ په خارجه وزارت
کې څوك نه درلودل . دلږ نفوس او دپراخې او لویې اراضی سره سره مو
دپاکستان په غلې ژوند کاوه .
زما اصلي اعتراض یاسوال دادی چې دپیښور په تهکال کې دسړك په
غاړه دپاسپورت دفتر دی چې اعظمی دیو یادوه ساعتونو په موده کې
په اوه اته سوه روپیو کلدارو هر پاکستاني ته یوازې او یوازې دایډی
کارت په ښوولو سره پاسپورت ورکوی . په نړۍ کې داسې هیواد نشته
چې هلته پاکستانی بزنس ونه لري له همدې درکه دکال په ملیونونو ډالره
پاکستان نه راځي . دپاکستان دصوبو غیر طبیعي وحدت تضمین
دی. اردو او دکمونستي نظام دمخنیوي ، دوګړو آزادي او نړیواله رابطه
وه . نه پوهیږم چې په افغانانو ولې بندیزو . زه خبرنه وم چې پښتوا

بعضې هیوادونو په زرهاو افغانان دکار دپاره غوښتل خو چا اجازه نه ورکوله داولې ؟ منطق او دلیل یې څه و ؟ ولې په پاسپورت بندیزو . حتی یو جناب ویلي وو چې که افغانان خارج ته ولاړ شي شوخي او بداخلاقي کوي او زموږ نوم بدیږي . او دکار ګرو ددرخواست مکتوب یې بیرته جواب کړی و . چې دلوږې له لاسه وابنه او خاورې وخوري هغه ددوی نام نیکي وه . ډالر دعربو ګټې پاکستان کوې دعربو په ډالري مصارفو دنړیوال اسلامي نهضتهاو تنظیم دپاکستانو په لاس کې دی . او په ډیر سرعت پرمخ روان دی پاکستان دبنګله دیش دجدایی او نظامي ماتې په نتیجه کې خپل پخوانی ډیر عادي سیاسي پرستیژ هم له لاسه ورکړی او مورال یې ډیر ټیټ راغلی و .

کله چې کمونستانو په افغانستان کې سیاسي قدرت ترلاسه کړ پاکستاني مقامات دنوی ژوند او دنوو لوبو سره مخامخ شول . پاکستاني مسوول مقامات پوه شول چې مسایل په عذر او لحاظ نه خلاصیږي . معنی داچې که په افغانستان کې کمونستي نظام قایم شو نو بیا څه روسان کمونستان او څه افغاني کمونستان دپاکستان نه دبیریل پسه جوړیری چې نه به حلالیږي او نه به چاغیږي .

که مجاهدین موفق شول دکمونستي نظام خطر به له منځه ولاړ شي او که نه تر هغې چې زمکه سوره وي نیالګی نه شین کیږي او بیخ نه نیسي . په دوامداره نارامی به دکمونستي نظام داستقرار مخه ونیول شي .

افغانستان ته دروسي قواوو راتګ یو نظر داو چې روسي قواوې به دیرق اسا حرکت سره کوزې راشي دهندوستان سره به هم سرحد شي به سمندر کې به بندرګاه ولري او خپلې ارزو چې منځنی ختیز ته رسیدل او حاکمیت ترلاسه کول [illegible] ته یه تر لاسه کړي . حقیقت داد‌ی چې په

تاریخی لحاظ افغانستان هیڅکله دیرغلگرو نهایي هدف نه بلکه دهدف پر مخ کې موانع وو . موږ همیشه دنورو لپاره قرباني ورکړیده .

دکمونیزم لپاره پاکستان له افغانستان نه ډیر مساعد و افغانستان پوسرمایه داري ، صنعتي او زراعتي هیواد نه و ، انقلاب غوك کوي اودچا پرضد یې کوي په موږ کې نه و . موږ دپاکستانیو ، اعرابو او په پای کې امریکایانو لپاره قرباني ورکړې ده .

په حقیقت کې مرستې کوونکو هیوادونو دخپلو اهدافو دپاره مرستې کړې دي .

ددې پر ځای چې موږ دچامدیون اوسو نور باید زموږ مدیون او شکر گذار اوسي .

کله چې دروسي قواوو او برق آسا خطر تیر شو او په لږه موده کې یې سرحدات پامال نکړه نو دپاکستان نظامي متخصصینو ته ثابته شوه چې که په مجاهدینو سرحدات قوي شي نوروسان په موجوده قواوو دلاندې راتګ توان نه لري . همغه وو چې دمجاهدینو ثابت بیسونه او غنډونه دسرحداتو په اوږدو کې جوړ شول او په کافي اندازه تقویه شول.

پاکستاني نظامی متخصصینو هغه وخت چې دروسانو لوژستیکي ناتواني ولیده ، په دې پوه شول چې په دوی کې داتوان نشته چې خپلې قواوې دوه چنده یادرې چنده کړي ، داځکه چې له یوې خوا اکمالاتي توان نه لري او له بلې خوا نه په دې کار سره مجبوریږي چې دشرقي اروپا جبهات ضعیف کړي او دغه کار په هیڅ صورت نه کوي ، له دغې مناقشې نه وروسته په ډیره زړورتیا دجهاد ادارې ته متوجه شول ، داوه دپکستانیو اندروني مناقشه چې‌دوی له خپل ځانه سره وه .

پاکستاني مقاماتو امریکاییانو ته داسې وښووله چې زه ستا دستونې

حیثیت لرم که زه ژوندي وم ته به ژوندي وی او که پر ماتیره شوه نو پر تاهم تیره بوله . زه دکمونستی سیلاب آخرین سنگر یم یامې ساته او یا وګړي په تش لاس په روسانو مه وژنه . اول ما قوي کړه چې دسیلاب مخه ټینګه کړم بیا زه پوه شه او جهاد

په نتیجه کې یې دجهاد هر فیر او ډز په امریکاییانو په چناق دلخواه وپلوره او مجرا که خپله اردو یې قوي کړه دااول ځل و چې دامریکې سی ای ای دپاکستان دای اس ای په پټو وګرځېدل . او دای اس ای په مقابل کې هیڅ جرات نه درلود . پیتر تامسن چې زما ډیر نژدی ملګری و دپاکستاني ای اس ای له لاسه‌ډېرو ډو په مرض ګرفتارشو . ای اس ای خپل عظمت وښود او میړانه یې ثابته کړه . او دهندوستان دوخت دجګړې دامریکاییانو دنامردی قصور یې واخیست . امریکاییانو دفاصلې دلریوالي ، او دحکومتونو دبدلون په خاطر دمنطقې په اوضاع ډیر بلد نه و په همدې لحاظ تر اخره دپاکستانیو خولې ته ناست وو .

دویتنام جګړو او نړیوال امریکایي د تظاهراتو په ایران کې نظامي ناکامی دامریکاییانو مورال له مینځه وړی و چې دیو مستقل عمل جرات یې نه درلود .

داعرابو په مقابل کې یې اعرابو ته وویل چې په دې کې شك نشته چې خادمین حرمین شریفین تاسو یاست خو حفاظت او پیره داري الله پاك زماپر غاړه کړې ده . که زه وم پیره دار شته او چې پیرداروي بیا خطر نشته او که زه نه وم نو پیره دار نشته چې په هغه صورت کې هر څه له خطر سره مخامخ کیږي . زه دروسانو دسیلاب آخرین بند یم که زه ټینګ نه شم نو چاره ستاسو په ستوني ده . په نتیجه کې یې داعرابو زراعتي غوا جوړه کړه او خپل هیواد یې اباد کړ .

دافغانستان په باب دپاکستان جنرالان پاکستان ته مسوول دی نه

افغانستان ته ، لکه څرنګه چې په اول کې اشاره شوې ده هیڅوک ښبل هیواد ته خاین او بل ته صادق نه وی یوازې افغانان .

که دشوروي امپراطوري پاتې واى په هغه وخت کې بى دا امکان درلود چې افغانستان ديو اسلامي هیواد په صفت په مخ کې پروت وای اوس چې هغه نشته نوښه دابولې چې دشمال له خوا غرونه بې غوزونه په ارامه وى .

دافغانستان دپنځلسو کالو مجاهد ولس جمع جنګي کمونستى اردو جمع تيزه په تيزه توپ اور اکټ جمع فاتح اسلامي نظام ته ددوست اودشمن روا داري نه وه او نه چا ددې قوم دارامې ناستې تضمين کولای شو . په همدې نسبت ديو قوي مسلح فاتح اسلامي نظام سره مخصوصاً امريکاييان مخالف وو اودي او زه داعقيده لرم چې دهيواد په اوسني حالت کې دلويو قدرتونو لاس وهنې ډيرې دي . اوس چې په افغانستان کې څه پاته نه دي نو امريکاييانو په ټيټه سويه بيا دافغانستان نوم پس له ډيرې خاموشى نه پورته کړى دى او ملل متحد تشويقوى ، رابين رافايل څو ځله ماته ويلي دي چې داد افغانانو کار دى اوس چې څه تغييرات راغلي دي بياګرځي او راګرځي ، په هر صورت بيا هم څوك معجزه نشي کولای او دبنده ګى په توان بې چې څه له له وسې پوره وو دهر چا دهيلو او ارزوګانو سره سم بې وکړل . چاچې د ( وى اى پى ) ژوند غوښته چې په نړيواله سطحه بې سارى نه و ، ورته بې مهيا کړ چاچې پيسى ارمان وې پيسه دارايې کړل او دبعضو نومونه په تاريخي دوسيو کې ثبت شوه . چاچې شهادت غوښته شهيدان شول او چاچې غزا غوښته غازيان شو دچاچې ګدايي په نصيب وه په کوڅو ګرځى چې جانيان وو بې قيده او آزاد شول لنډ مطلب داچې هر چاته خپل قسمت ورسيد .

مهاجرين :

داسلام په مقدس دين کې دهجرت ثواب ځکه ډير دی چې مايوسي او ناامیدي لري او دبې وطني او جلا وطني نه بل سخت کار نشته له ټول جسمي راحت سره سره روحي نارامي موجوده وي ، هجرت زيات نه زيات دنامعلومې مودې زندان ته ( لکه دپخواني باشي په نامه ) شباهت لري ، په همدې خاطر هجرت توپم دشکايت وی .

دافغاني مهاجرينو قصه په پاکستان کې بيله وه درې مليونه مهاجر راجستر وو خو دباجوړ ، دير، سوات ، کرمه ، وزيرستان ، او بلوچستان په صوبو او ايجنسيو کې حتی تر پنجابه پورې ديو مليونه شاوخوا ناراجستر شوی مهاجرپراته وو په دې کې هم شك نشته چې دمهاجررو په خاطر دپاکستان حکومتي کسانو ګټه وکړه ، کوټې او بنګلې والاوو ګټه وکړه ولې په عامه توګه د اولس کسبه کار او غريب سخت تاوان وکړ .

دمثال په توګه يو پاکستانی ګل کار په ډير نازسره دورځی سل روپی کلداري اجور غوښتله پاکستانی مجبور و ، چې دضرورت په خاطرهغه استخدام کړي دمهاجرو په وخت کې دپاکستاني ګل کار تر څنګه دهغه نه دې لايق دورځې په پنځوس کلدارو په اجوره لس ګل کاره ودريدل چې په همدې لحاظ پاکستاني کسبه کاروته نقص او تاوان ورسيد . په سلو کې لس تر پنځه لسو پورې ترانسپورت ، رستورانونه دکسبه کاری دوکانونه دافغاني مهاجرو په لاس کی وو که وسطي يو ميليون کوره قبول کړو دپخلي اوسون لرګی او که دوه درې مليونه څاروی قبول کړو دهغوي علوفه او واښه څومره کيږي ؟

زه په خپله دداسې واقعې شاهدنه يم چې دافغان اريانو او پاکستاني عوامو ترمنځه څه فرق نه شو ... وو ... دې نه په

پاکستان اویا بل هر خارجی هیواد کې اوسیدونکو افغانانو ته داسلام له نظره مهاجر نه ویل کیږي . هر کله چې مسلمان دکافرو دلاسه تینبته وکړي او دخطراتو نه خپل سرمال او ناموس بچ کړي هغوی ته مهاجر وايي. که څه هم درباني په اداره کې څه اسلامي اعمال او آثار نه وینم خو دکافرو حکم پرې کول دعلمای کرامو کار دی که اداره اسلامي وي نو بیا افغانان مهاجر نه دي او که کفري وي بیابایدد مهاجرو په نامه یاد شي . په پاکستان کې داوسیدونکو افغان مهاجرینو دکمپونو انضباطي امورافغاني ملکانو په راس کې وو . پاکستاني خولا پریږه چې دبل ځای افغان بې له اجازې نشو ننوتلی هر هغه افغاني یا غیر افغاني مشران چې وایی په افغانانو کې اخلاقي فساد پیدا شوی دی دا په خپله ځان ثابته وي چې تاریخي پوهه نه لري . دوی دې خپلې سنځې کنډې او زامن یتیمان کړي بیا ورته معلومه شي چې یومن اوړه څو پتیرې کیږي زما په بیطرفانه قضاوت افغان دنړۍ ډیر باهمته او باغیرته قوم دی خو متاسفانه چې مشران یې بې درده او بې همته وو او اوس خو دمشرانو فاقد دی .

دحیواناتو په گله اورمه کې نیرومند او پرڅان متکي او مطمین درمی په سرك ځي اورمه دغرو دکمرونه تیروي له بده مرغه چې اوس دافغانانو تر مخې پسنې ماتی گلې او وزې دي .

داخبره ډیره فضوله او احمقانه ده چې رباني دی دافغان کور خرابوي او پاکستان نه کور غواړو ، رباني دې زخمي کوي پاکستان نه علاج غواړو، رباني اداره دې دافغانانو په سر او مال او ناموس تجاوز کوي دپاکستان نه دافغانانو دسر مال او ناموس مصونیت او امنیت غواړو .

ولې په یو اواز نه وایو هر هغه چا چې دافغان سرمال او ناموس ته زیان رسولی پاك خدای دی دهغوی مسوولین بې سره بې ماله او بې

ناموسه کړي ، امین .

هر هغه افغان چې دپاکستان نه شکایت لري دحکومتي مقاماتو دشخصي یا اشخاصو په هکله نه یې ردوم ولې دعام اولس په قربانیو او حوصلې سترګې پټول ګناه ده.

دبحث او جدي خبرو په ترڅ کې یو پاکستانی متوسط مقام راته وویل : ځوك چې دخپل دکور نه غلا کوي دبهر غله نه ګیله په کارنه ده ، ستاسو بعضو افغانانو چې څر نه درلود چې خپل جوار پرې ژرندې ته یوسي اوس دلند کروزرو په ټاپ ماډل باندې کبرجن دي . نن سبا په افغانانو کې پاکستانی ضد ذهنیت پیدا شوی او مخ په زیاتیدو دی دروس فجایعو او دهندوستان فراموش او بده خوله پاکستان ته اوښتې ده ، داد افغانانو ګناه او قصور نه دی افغانان احسان فراموش نه دي .

اصلي علت یې دپاکستان سیاسي عدم کفایت دی ، دوی دایمي مرکزي ملي پالیسی نه لري . هره چوکی او مقام والا دعقل وزیر دی او هر کله ځانته خیال لري . ځان ځاني ګټو پر ملي منافعو سیوری اچولی دی .

روسان او هندوان له خجالته خاموش وو ایران په خپلو مشکلاتو اخته و ، دافغانانو میزباني یوازې او یوازې دپاکستانیو په لاس کې وه چې نن ترې نه میزباني نورو ته ولاړه او دوی په تجرید کې پاته دي .

رباني داولین افغان په صفت د روسانو نه دجنګ دتاوان غوښتنه کړې ده ، تر اوسه لا دشهیدانو هډوکي دمځکې په سردي خو دروسانو مشاورین یې بیا راوستل . دیونیم میلیونو شهیدانو په سینو یې دروسانو سره بې ننګي قراردادونه امضا کړل . دادرباني شعار و چې ویلې یې پخوانیو نامسلمانه دولتي مشراتو ذمسلمان ورور مملکت پاکستان پر ځای دهند وانو سر دوستانه تعلقات درلودل .

که دپخوانیو تش دخولې تعلقات وو ، رباني دافغانانو دوژلو له پاره

هندي پیلوټانو ته دافغاني طیارو جلو په لاس کې ورکړ په پامیرانو کې ایراني مرسته رباني دمداخلې په صفت وغندله ، نن سبا درباني هیئتونه بې وقفه په روسیه ، ایران او هندوستان کې پراته دي مداخلې او لاس وهنې تشویقوي . رباني دیو ګروپ داستاد په صفت په هیواد کې دتخریب او خیانت اولین سبق په پاکستان کې زده کړی و او دمیاشتې درې سوه روپیو کلدارو په عوض یې دخپل وطن خرابي شروع کړې وه .دپاکستان پرضد تبلیغات څوك کوي او ستونزې څوك جوړوي؟

١- په پاکستان کې دملی دوامداره ، ثابتې پالیسی نشتوالی .

٢- دبرحاله حکومت د پرځولو په غرض دمخالفینو فعالیت او تبلیغات.

٣- دمذهبي انقلابي احزابو مخالفت .

٤- روسان دانتقام په مقصد .

٥- هندوان دانتقام په خاطر .

٦- ایران دمیزبانی دانتقال او نورو مهمو او اقتصادي مسایلو په سبب.

٧- رباني دخپلې اداري دبقا لپاره .

٨- افغاني کمونستان دانتقام لپاره .

( وایي چې کړنه وسره خو دیوالونه پاخه کړل ) مګ زموږ دنړېدلي هیله او ارزو داوه چې پاکستانیان به دنړۍ کور او نوی ژوند دپاره دیوالونه پاخه کړي داځکه چې یو ماشوم هم پوهیدلای شي چې وروسته دداسې قربانیو دیوه هیواد په ګټه کې دبل هیواد ګټه او یا تاوان کې دبل تاوان دی .

څو خرابو نیتونو او دانفرادي خود سریو نتایج هر څه له څاورو سره برابر کړل . او افغاني یا تجربه پوهانو وخت په وخت پاکستاني عالي مقاماتو ته په ډیر صراحت سره بار بار ویلي دي چې باید کوشش وشي

چې دافغانانو مسایل په ښه صورت په ډیره بیړه دافغانانو په خوښه حل شي او دابه دراتلونکي ژوند لپاره نوې لار او پوخ دیوال وي خو له بده مرغه چې دوی دنوې سرمایه گذارۍ یو ځای په پخوانیو قرضونو پسې ولاړل .

که دربانې مخالفین دافغانستان شمالی گاونډیو سره مقیم وینو ربانې به دپاکستانیو دوست و او پاکستانی ضد تبلیغات به نه وو اوس چې خبره سرچپه ده ربانې ته مشکله ده چې ددشمنانو ددوست دوست شي. (وايي چې دیو لعل نه دوه پچې ښې دې ) پاکستان هم نشي کولای چې مطلوب اکثریت پریږدي او دقدرت نامطلوبه غاصب سره ملگري شي . دربانې کمونستی ایتلاف دپاکستان په عوض روسانو او هندوانو سره ښو تعلقاتو ته ترجیح ورکوي .

که ټول مطلب په یوه جمله کې لنډ کړم هغه داچې دافغانستان او پاکستان مثبت او منفی علایق په دواړو هیوادونو دبل هر هیواد نه زیاد اثر لري .

دا زما شخصي نظر و چې ازاد اودچاله تاثیر نه پرته مې تقدیم کړ داهم لوستونکو ته اطمینان ورکوم چې نه مې دچا پیاز خوړلی او نه مې له خولې نه بوي راځي . او داهم ته غواړم چې دنورو نظر بدل کړم .

# عرب او دافغانانو جهاد

:عربو په هکله په کافي اندازه معلومات نه لرم هغه انګیزه چې
دشناخت او معرفت سبب شي په منځ کې نشته. دنړیو تیلو عرب په
مساوي کلاس مانه مني او دوهم کلاس زه نه منم
غریب خدای کړي ، بې غیرته چا کړي ؟
په دې کې شك نشته چې داعرابو په هکله مې له اسلام نه مخکې او
وروسته په کافي اندازه تاریخي معلومات شته دي ، دآنحضرت (ص)
په خصوص کې یو انګلیسي دانشمند لیکي چې ( دچایلډنیور بورن )
دآدمیت له پیدایش نه تر اوسه داسې ماشوم نه دی پیدا شوی . دهغه
مقدس ذات دکار نامو دمجموعې خلاصه په دې لیکنه کې شوې ده .
زه دیو مسلمان په صفت په عمومیت کې اعرابو ته احترام کوم ، داځکه
چې هلته زموږ مقدسات دي زموږ قبله او کعبه ده . یو فرض مو هلته
اداکیږي .

دحضرت عمر فاروق سیاسي قیادت او دخالد بن و..د له بعد..ي ستراتیژۍ او تکتیك سره ډیره مینه لرم . انور سادات ته چې تر ..و مخه یې دافغانانو په مسلحانه جهاد کې په ډیره میړانه او دلاورۍ .. واخیستله او مجاهدینو ته یې وسله ورکړه احترام او دعاکوم .
داهم واقعیت دی چې اعرابو له مجاهدینو سره په انفرادي او دولتي سطحه مرستې کړې دي چې زه ترینه واقف نه یم ، هغه شی چې ماته معلوم دی ، هغه دسعودي عربستان دولتي بې سارې مرستې دي چې اکثرافغانان پرې خبر نه دي .
دمجاهدینو له پاره دامریکې سفیر پیتر ټامسن ماته په خپله خوله ویلي وو چې ستاسو په جهاد کې له دریو ډالرونه دوه ډالره مصرف دسعودي عربستان دي چې موږ هم ترینه مننه کوو .
افغانان احسان فراموش نه دي او ښې خاطرې به یې له موږ سره باقي وي . ددوی مرستې هم انګیزې لري ، دتیلو پیدایش او استخراج دشرق او غرب دمرګ او ژوند توجه ځانته جلب کړې ده . منځنی ختیځ دقدرتونو درقابت او دبزکشۍ میدان و . افغانستان هیڅکله دنهایی هدف ماهیت نه درلود . دواړو خواووته معبر او دروازه وه که روسانو ته هوس او ارمان و اعرابو ته ترس او ډار و .
په منځني ختیځ باندې د حاکمیت لپاره دافغانستان غرونو دروسانو له پاره حیاتي اهمیت درلوده له بلې خوا دافغانانو په مقاومت کې داعرابو بقا وه ، یعنې موږ په خاصه توګه داعرابو په خاطر قربانۍ ورکړېده او دتیلو قرباني شوو که دالحاد او اسلام مسایل له نظره وغورځوو دروسانو په راتګ زموږ ګټه دغربیانو او په خاصه توګه داعرابو لپاره سراسر تاوان و چې موږ دغه قرباني اسلامي اخوت او وروري ته حواله کوو .
دانفرادي مرستو ګټې چې اشخاصو ته رسیدلې دي زموږ په ټولنه کې

پخوانی ورورې په نفاق او شقاق بدله کړې ده . دعربو ډېرو لاس وهنو، ایران رقابت او مداخلو ته تشویق او مجبور کړ .
که دانفرادي اعرابو په هکله افغانان متاثر او ناراضه وي قصور دهغو افغانانو دی چې میزبان و .
د ۱۹۹٦ کال دجنورۍ څلورم دپنجشنبې ورځ دپیښور ښار ، تهکال دلیاقت موټر شویۍ په دفتر کې ناست وم ، چې دیو عرب او افغان قصه مې واوریده . ددې قصې په اوریدو مې دتیر جهاد دکلونو ډېرې لیدلې او اوریدلې قصې راپه یاد شوې . کله چې له تهکال نه ورسك روډ ارشاد آباد ته راتلو ،دعرب او افغان قصې چې دبې غیرته میړه شرم او خجالت او دحقیقي افغاني ښځې سرلوړۍ او افتخار و تردې حده زما فکر او سوچ مصروف کړی وو چې نژدې و موټر رانه ټکر شي .
پیښې شوې دي چې دمجنت ځلالي وي او خرڅې شي نه داچې انسان خرڅ شي . پخوانیو افغانانو به له تقلید نه کرکه او نفرت کاوه . په همدې خاطر په افغانستان کې دره په دره دود او دستور سره جلا وو . دهر چا افتخارات ځانته سیالان ځانته وو حتی هر چابه یوازې له خپلو سیالانو سره خیښي او خپلوي کولې .
یو ځل مې دسیدنور محمد شاه مینې داسماعیل خان دتپې په کوورنو کې له یو سپین زیري نه دخپل ملګرې دکور پوښتنه وکړه . هغه راته وویل ( آقاجان نمیدانم در این جا ماچند خانه اصل قوالان استیم دیگران هم لګه بوګه محمد زیی اند )
دمیرمن رخشانې خوندوره سندره داوه چې ویل به یې :( که ته مومند یې زه خیالي وزیره یمه ) داټول قومي افتخارات وو . چاله چانه ځان کم نه ګاڼه . ملي افتخاراتو دمنفي تقلید مخه نیولې وه دننیو ایجاباتو مطابق باید تعلیم تقلید کړو ، صنعت تقلید کړو ، تکنالوژي تقلید

کړو نه داچې ( روټی کچھ نہی سامانه بهت بهت ) چاچې روسي تقليدونه وکړل روسان شول نتيجه مو په سترګو وليدله ، چاچې دغربيانو تقليد کاوه داسې غربيان شول چې دقوم په سطحه ورك شول .

زه دعلمي سوبې په اندازه دافغانيت په چوکاټ کې دژوند دسطحې دبدلون مخالف نه يم چې څه جوړکړو بيا دهغې په استعمال ښه ښکارو . دولس دژوند سطحه مو دجلا دارو تيزو وه خو يو تعداد دهاليوود ژوند تيراوه .

پخوا به افغانان له خارجي ښځو سره دودونو په خاطر طعنه خواره وو . اوس ځينې افغانانې له خارجيانو سره په چرچونوکې نکاح تړې چې دغه تراژيدي دمشرانو برکت دی . اود اهم داواره ګۍ نتايج دي . تګاب کې زموږ دکلي يو انجينر چې تازه له شوروی اتحاد نه له تحصيلاتو وروسته راغلی و مورېې زموږ کو ر ته راغله او زما مور ته يې وويل چې يوه شاخی راکړه . مورمې وويل چې شاخی خو له دهقانانو سره وی، له ما سره څه کوي ؟ دانجينر مور وويل : زه هغه شاخی غواړم چې ډوډۍ پرې خوړل کيږي ، موږ په کور کې دمستو قاشق او چاړه لرو . زوی مې انجينر صاحب ډوډۍ په لاس نشي خوړلی، دانجينر ليدلو ته ولاړم . په کټ کې ناست و ، صندلۍ ،ميز او دادی ټکرې يې سرميزی وو .

زما سره يې په روسي ژبه جوړتازه شروع کړه . خبرې يې په شوروي کې دخوش ګذارانۍ په قصو شروع کړې . دوهمه خبره يې داوه چې زموږ هيواد بيرته پاته دی او دتګاب دوروسته پاته کيدو لوی سبب فخر المشايخ دی . ما په دې خبرو کې دمسخره ګۍ په خاطر لاتشويق کړ او ورته مې وويل چې په دې لاره کې علني مبارزه پکار ده ، بايد خلك وپوهول شي . وروسته بيا ولاړم خپل پلار ته مې وويل چې انجينر له شوروی نه راغلی دی ، که څو دقيقې دهمسايګۍ په خاطر ولاړ شي او

ويې ګورې دابه ښه وې . پلار مې وار له واره وویل چې کافر شوی دی که نه؟

ما په جواب کې عرض وکړ ، چې تاسو به خپله ورسره خبرې وکړئ .
له پلاره سره مې زه او یونفر ولاړوو دانجینر جوړتازه یې خوښه نه شوه .
ما انجینر ته اشاره وکړه چې خبرې ازادانه وکړي څه چې دې ته مبارزه وايي . انجینر په خبرو کې په دین تعرض وکړ . پلار مې عصباني شو او امریې وکړ چې وهئ یې ، ما اوهغه بل نفر انجنیر چپه کړ او ښه مو ووهاوه . پلار مې ورته دمور کنځلې کولې . وروسته بیا ما مداخله وکړه او ضامن شوم . انجینر تر ډیرې مودې پورې له مانه ګیله من و چې ټول فساد ستاو .

زه بعضې افغانان ګورم چې ښکلې ږیرې، ښې باړې دعربو تر مخ داسې خوش امد کوي او منډې وهي ، لکه پخوا چې به شاطرانو له سورونسره منډې وهلې .

دافغاني ښځو عربي جبري تقلید تور حجاب راته رنج راکوي . له افغاني ملي حجاب نه موږ څه بدي لیدلې دي ؟ دکلچر په بدلون افغانیت بدلیږي چې داملي خیانت دی .

په ستهوکنډو کې یو عرب هلك له یو کندهاري ځوان سره راغی له جوړتازه نه وروسته یې وویل چې کاشکې یو اسیر حلال کړم . داعصابو کنترول مې له لاسه ورکړ او ومې ویل چې ستا دغه قرباني او ثواب بس دی ، کفایت کوي .

خپلې موضع ته ولاړم او ژړا راته راغله چې خدایه افغانٌ دې ولې خوار کړ چې خبره یې دعربي هلك له خوا حلالولو ته ورسیده.
جلال آباد شمال په خیوه کې دعربو له طرفه د افغانو ښځو تراژیدی ډیرو اوریدلې دي . بعضې کسانو به دافغانانو پرځای عربي باډیګاردان

ساتل .

زه نه پوهیږم چې له پیسو نه پرته هغوی څه لري چې موږ ترینه افضل نه یو ؟

دابې شکه چې مسلمان دمسلمان ورور دی خو اول باید افغان دافغان ورور وي بیا نور . دافغان وژل په عرب ، ورورې نه ده .

په اسلامي وروری کې باید دغریب مسلمان او دعرب پیسه دار تر منځ فرق نه وي .

که چا له موږ سره دولس په کڼه مرستې کړې دي ، موږ هم احسان فراموش نه یو او شکریه ادا کوو .

خو زموږ په زخمي بدن مالګه اچول پکار نه دي . وايي ( مرا زخیر تو امید نیست ولی شر مه رسان ) دکرلچی دهوټل لوبی نه منو ، دافغانانو دشمنی رټ په رټه وه ، ترورستي مسابقه نه لرو له بده مرغه چې دځینو اعرابو له لاسه نن سبا افغانان هم دژبو په سر دی او په بدنامه سره یادیږي .

ډیر افغانان دډالرو په قیمت او معاش دځینو کسانو له خوا په نورو هیوادونو دجنګ له پاره پلورل شوي دي.وايي :( کار زمین رانیکو ساختی که به اسمان پرداختی )

اوس هغه وخت او هغه عرب نشته چې دتورې په څوکه يې له شماله تر جنوبه اوله شرقه تر غربه فتوحات کول .

دایران ، مصر ، یونان او روم امپراتوری یې ړنګې کړې دیهودیت اوعیسویت پر ضد یې مبارزه وکړه او داسلام مقدس دین یې خپور کړ .

دپترولو له پیدایش او استخراج نه وروسته دوی خوارانو دآزادی مخ ونه لیده کله مستعمره او بیا استثمار شول . دپاك خدای دنعمت په بدله توپ او راکټ اخلي او خپل ورونه مسلمانان وژني .

( په داسې بلا واوړې چې پر توگ په غاړه راوړې ) خدای پاك مو دې
له دې څو بلاوو نه خلاص کړي ، چې دملت پرتوگ يې ورپه غاړه کړ .

دانساني طبعيت په تقاضا بد له ښو نه تقليد کوي او که څوك دبدو
تقليد وکړي معنی داده چې دشخصيت په لحاظ هغوی له بدنه بد تر دي.

نن سبا چې افغان څه شی جوړ کړي عربی نوم پرې کيږدي ، زما په
عقيده ښه به داوی چې دهغې منطقې دپاك شهيد نوم پرې کيښودل
شي که مور الحمد لله مسلمانان يو ، خو افغانان هم يو .

# ایران او دافغانانو جهاد

ایران زموږ ګاونډی دوست هیواد دی . چې ښه او ځلانده تاریخ لري . تر هغه ځایه چې ماته معلومات دي ، زموږ سیاسي تعلقات دهمیشه له پاره دوستانه وو دافغانستان په سلطنتي دوره کې ددولتینو ترمنځه دمناسباتو سطحه ډیره اوچته وه، چې داما دایران په دوه نیم زره کلن جشن کې چې په تخت جمشید او شیراز کې اجرا شو په سترګو ولیده .

ما دافغانستان سلطنتي کورنی له لوړو اعضاوو سره دنظامي یاور په صفت په جشن کې اشتراك کړی و . له حرکت نه مخکې دایران له شاهنشاهي تشریفاتو او خارجه چارو وزارت سره تماس حاصل شو . چې افغاني لوړ رتبه سیاسي مقامات غواړي چې داعلیحضرت شاهنشاه آریا مهر دبیانیې په متن پوه شي.

له اطمینان نه وروسته بیا هم مخکې تر دې چې طیاره مو په تهران کې
کوزه شي یو ځل بیا دبیانیې دمتن په هکله تو ضیحات وغوښتل شول .
هدایت دا و چې که په بیانیه کې دافغانستان په هکله څه لیکل شوي
وي طیاره دې له هوا نه بیرته راوګرځي . له هغې نه وروسته چې
دشاهنشاهي دولت عالي مقاماتو نه یقین حاصل شو طیاره مو په تهران
کې کوزه شوله او هیئت دنورو سترو میلمنو په تناسب په ډیره لوړه
سویه پذیرایي شو .

کله چې جشن رسماً افتتاح او شروع شو له نورو میلمنو سره چې دنړۍ
دولتي عالي مقاماتو اشتراك کړی و دافغانستان میلمنو ستر فرق
درلود.

( مهمان رامهمان دار صاحب خانه را چربتر) موږدصاحب خانه په
حساب راتلو . په ورځ کې څو ځله په نوبت سره مرحوم اعلیحضرت
شاهنشاه ، شهباز ، او دشهبانو مور زموږ خرګله‌ته دپوښتنې لپاره
راتللې .

کله چې دجشن رسمي مراسم پای ته ورسیدل نور میلمانه رخصت شول
او افغاني میلمانه داعلیحضرت شاهنشاه په پیلوتی تهران ته ستا نه او
دشاهنشاه شخصي میلمانه شول .

څو ځله مې نور هم ددواړو سلطنتي کورنیو تر منځ ډیر خواره او
دورور ګلوی تعلقات ولیدل . دمحمد داود خان دجمهوریت په وخت
کې دافغاني وګړو دبیکارۍاو اقتصادي ستونزو په خاطر دایران دروازه
دکار لپاره دافغانانو په مخ خلاصه وه . اوریدلي مې دي هغه وخت چې
دمحمد داود خان پرضد کودتا شروع شوه ایراني مقاماتو دکومانډو ګانو
په وسیله هغه ته دنجات پیشنهاد کړی و .

دجهاد په کلو کې ایرانیانو بې له فرق او تبعیض نه افغان مهاجرینو ته

په خپله خاوره کې ځای ورکړی و ، که څه هم خپلې ستونزې یې ډیرې وې ، بیا هم له مرستو یې دریغ ونه کړ .

هغه جهادي تنظیمونه چې په ایران کې یې بیسونه او قرارګاوې لرلې خواه مخواه دایران له مرستو نه برخوردار وو .

په دې اواخرو کې دا احساس وشو ، چې دایران دولتي مقامات دکابل داقلیت اداري پلویان دي ، دنژادي تبعیض تشویق دوستي نه ده .

ایران ته به ښه داوي چې داشخاصو ددوستۍ پرځای له افغاني وګړو سره خپله رابطه قایمه کړي او دوستانه مناسبات وساتي .

زه عقیده لرم چې دایران لپاره ارام او آسوده افغانستان اود افغانستان لپاره ارام او آسوده ایران ته ضرورت دی .

نن سبا دنړۍ هیوادونه خپلې ګټې په نژدیوالی او اتحاد کې ګوري موږ هم باید کوشش وکړو چې نژدې او دوستانه تعلقات وساتو او خپلو وګړو ته باید په راتلونکی کې دانتقام ذهنیت ورنه کړو . نن باید هغه کارونه وکړو چې خاطرات یې دسبا لپاره ښه وي .

# امریکاییان او دافغانانو جهاد

دجهاد په کلونو کې دجهاد ضرورت په خاطر په عمومي توګه هرکال ځینو امریکاییانو په دعوت امریکې تللی یم او له حکومتي مقاماتو سره مې لیدنې خبرې او بحثونه کړي دی او په وارووار مې دکانګرس او سنا په غنډو کې ګډون کړی دی په هر سفر کې ناروغه شوی یم خو د اخر سفر ناروغتیا له نورو سفرونو سره فرق درلوده‌په نورو سفرو کې به پروګرام دومره ضیق او تنګ و چې دخوب او خوراك وخت به مې نه درلود .

دطیارې له کوزیدو او بیرته دطیارې تر سوریدو پورې ټولې منډې وې، ملاقاتونه وو ، دعوتونه وو او هر دیپارټمنټ به ځانته دملاقاتونو خواهش درلود . راپه یاد شي چې یو ځل ډګرمنی کرغکی یو چاته وویل چې که

ستاسو په کار وي نو ځانته بلنه ورکړئ اوس موږخپل پروګرام نه شو خرابولای . خو داخل ناروغه شوم ځکه هیڅوك نه وو . چې ماوګوري ، حتی زما په درخواس حاضرنه وو ، چې دملاقات وخت راکړي.

په ۱۹۹۳کال کله چې له ټکساس نه واشنګټن ته روان وم ، ملګري راته وویل ، صافی غواړم تاپوه کړم چې د واشنګټن په لیدو او تګ خفه نه شې . هغه شیان چې تا پخوالیدل هغه به نه وي اوس به هغه ګرمجوشي نه وي له تاسره به ډیر سوړ وضعیت وشي ، له مخکې نه مې پوه کړې چې مایوسه نه شې ، داکار بوازې ستا لپاره نه ، بلکه دازموږ دامریکاییانو دژوند سیستم دی ، لکه افغانستان دنړۍ په هرګوټ کې چې دامریکې په ګټه یا تاوان کوم ستر حرکت لکه جهاد پیداشي ، زموږ دحکومت په هر دیپارټمنټ کې دهرې خانګې دپاره دوسیې خلاصې شي. دهغه مملکت په هکله کورسونه وابو ، سفرونه کوو ، دوستان او ملګري پیدا کوو ، او دهغه مملکت سوسیالوژي مطالعه کوو او ګوروچې څرنګه کولای شو هغوی ته نژدې شو ، کله چې مو کار خلاص شو او وظایف ختم شي ، وروري او برادرخوانده ګي او ملګرتیا ختمه شي او په روسیه کې قید شي ، هغه مملکت نور له یاده ووځي او دهغې پرځای بل مملکت راپیدا شي . زموږ دنیا مادي او ماتریالستي دنیا ده احساسات او مورال او معنویات مو له لاسه ورکړي دي .

شاید زما عزیزان او هیوادوال ددې لیکنې په هکله ووايي چې دې ته څه ضرورت و او دلیکونکي او لوستونکو له امریکاییانو سره څه کار؟

خو حقیقت دادی چې دنن ورځې لیکنې او جریانونه دسبا ورځې دتاریخ پاڼه ګرځي ، موږ هم په دې خاورینه کره کې ژوند کوو که موږ ته دپخوا نیو لیکنې راپاته وای اویا موږ دلیکنو په ماهیت او اهمیت پوهیدلی نو خو دکښ او بیګانه پروربه نه وو . آب نامدیده موږ

کشیده به نه وو . تر اوسه ښه اوبد دوست اودښمن نه پیژنو . یو خارجي نه خالي دوچې ټنکیو لپاره دعوتونه ورکړو ، تاوانونه وکړو ، په منلو ځانونه ستړي کړو خپل ملي اسرار په ډیر افتخار دمعلومات وروشی په غرض ورته افشا کړو او خوشحاله هم اوسو، چې ماستر راته ټنکیو او ګریټ وویلي .

راپه یاد شي چې یوه ورځ زما تخنیکي امر ، دروغنیاتو تصدیقو نه اواسناد دسه ګانه هیئت له امضا ګانو نه وروسته پر ماچې لوی امر وم امضا کړل ، او بیا یې روسي مشاور ته دامضا لپاره وړاندې کړل . روسي مشاور دتخنیك امر ته وویل چې زما امضا ته څه ضرورت ؟ ما او دتخنیك امر ورته وویل چې وزارت دفاع یې ستا دامضا په لیدلو ژر مجرا کوي او جنجال او مشکل تراشي نه کوي . اسناد یې امضا کړل او کله چې دتخنیك امرو.ووت ماته یې وویل چې صافی ستاسود افغانانو دغه کار ډیر غلط دی په خپلو افغانانو چې همیشه ستاسو سره وي او دتخلف په صورت کې هر وخت دقانون په چوکاټ کې له هغه تپوس کولای شئ په هغه اعتماد نه کوئ ، په یو خارجی چې نن شته او سبا نه اعتماد کوئ ، داکوم عقل او منطق مني چې دافغانستان لپاره به دیو افغان نه خارجي صادق اوسي ؟ په هر حال کله چې امریکا یادوم معنی هیواد نه بلکې هغه لویه وچه ده ، چې هر ولایت یې یو هیواد دی ، دانساني ژوند اساس په ډالروبنا شوی دی او هیچاته هیڅ وخت کې بس نه دي . څرنګه چې موږ دتولد په وخت په غوږو کې اذان او په قبر دعا ګانې کوو امریکاییان په ډالرژوندي او په ډالرو مړه شي .

په امریکایي ټولنه کې مادیات له معنویاتو سره موازي نه ، بلکه دضدیت دجګړې په سنګرو کې پراته دي اوپوبل سره دفع کوي . که تاته ضرورت ولري درته لیلا شي او تامجنون کړي او که ستا په کارشي ببا

پېښي لوڅې کړې او پاېڅې پورته کړه او په خړو اوبو کې ماهيان لټوه ، ملګري دهميشه لپاره په نيمه لار کې پرېږدي اوتر اخره نه ځي . دنړۍ ډيرو هيوادونو داروپاييانو مخصوصاً دانګريزانو ، خپله ازادي تر لاسه کړه ، خو څه موده وروسته بيرته دانګريزانو په کامنولت کې داخل شي ، ولې دامريکاييان له کمکونو سره سره ټوله نړۍ (مرګ بر امريکه ) وايي .

دنورو ممالکو په جګړه کې دامريکې بيرق شوکوي او اور ته يې اچوي دايران شاهنشاه اعليحضرت امريکاييان په منطقه کې تثبيت کړل کله چې په قدرت کې و اوپاددوی ورته ضرورت و ، دوی ورته شاه شاهان وايه ، او کله چې له منځه ولاړه دده طياري ته يې په خپله فضا کې اجازه نه ورکوله دامريکاييانو دولتي سيستم داسې دی چې نن وي اوسبا نه ، په هغه ورځ چې جمهور رئيس بدل شو ، تر چپراسي پورې بدليږي او په جامعه کې ديو عادي سړي په صفت کسب او کار کوي، په اروپا کې چې هر هيواد يې تاريخ لري او ځانته افتخارات لري ، مخصوصاً دانګريزانو اداري سيستم بيل دی . زيات کار او اختيار دسيول مرونت په لاس کې وی دحکومت لوی اشخاص په چوکۍ او مقام کې دمسووليت نه ډك عزت او احترام لري، خو کله چې له حکومتي چوکۍ او مقام نه خلاص شي بيا يې مسووليته ، عزت او احترام لري او په هر وخت کې ترې نه مشوره او کار اخلي .

ما چې به دامريکاييانو دبشر دوستۍ اوحقوق بشر او انساني خبرې اوريدلې نو دافغانانو په هکله ترينه خفه او او ګيله مند وم ، خو په تصادف سره مې يو ځل له جناب ميوندي صاحب سره دسپيني ماڼۍ په دوه کيلومترۍ کې دتورانو حال وليد او بيا مې دډګرمن صاحب امير محمد خان دوتاڼي سره دنيوپارك ( نيوجرسي ) کوڅې وليدلې او د

تورانو حال مي وليد او بيا دواشنګټن نه نارت کارولاینا او بیرته واشنګټن ته په اورګاډي کې لاړم اوراغلم دتورانو ژوند مې ولید ، سړی داګمان نه کوی چې په امریکا کې دی ، بې شکه مې دا یقین راغی چې دسپینو امریکا ییانو دنیمو نه زیاتو په سینه کې انساني زړه نشته.

مافکر کاوه چې يهود دامريکاييانو دوستان دی ، خو دافکر غلط دی ، يهوديان په منځني ختيځ کې دامريکاييانو دمنافعو پيره داران دي او بس ، نن چې داعرابو تيل ختم شي ، بيا دې يهود دامريکاييانو دوستي وګوري . کله چې اروپا زړه شوه مخصوصاً انګريزانو دنړۍ دژاندرام قوماندانی امريکې ته وسپارله له يوې خوا ډير ستر مسووليت دامريکاييانو په غاړه ولويد او له بلې خوا يې داروپاييانو په شان نړيوال معرفت او شناخت نه درلود حتی اوس هم دانګريزانو په معلوماتو نو اتکا کوي، لکه زموږ جناب احمد شاه مسعود چې ام ای سکس دامريکې سی ای ای ته معرفي کړ ( دساندیګول وارریپورتنګ په نامه کتاب ) دمعرفی په ریپورټ کې یې ویلي دي چې احمد شاه مسعود زموږ دافغانستان مارشال هيرو دی .

امريکاييانو چې هرې خواته لاس واچوه ناکامه شول او څومره چې امريکاييانو عقب نشيني وکړه او پرشاولاړل پر همغه اندازه روسانو پيشرفت ته دوام ورکړ او داسې وخت راغی چې دامريکی زينې ته ورسيدل .

په نړۍ کې يوازينی شعار مرګ بر امريکه وو ، دناپيلو هيوادونو تمايل دروسانو لورته و ، دويتنام جګړو امريکاييان بې روحه کړي وو او ژوندی مړه شکاريدل ، په اروپا او حتی امريکه کې ستر تظاهرات په ويتنام کی دجنګ پر ضد وو . په اروپا کې دکمونستۍ شوق مخ پر

زیاتیدو و . مخصوصاً امریکاییانو افغانستان دروسانو په برخه حساب کړی و . او دا ډار یې لاره چې نور لار اکورنه شی . دجهاد په اولو کلونو کې دامریکابیانو جدي پوښتنه او تپوس داو چې دروسانو په قول اعتبار نشته موږ څرنګه اعتبار وکړو، چې روسان نور نه راکوزیږي . کله چې له امریکایي مقاماتو سره مخامخ شوم قصه ټوله « بز درغم جان کندن قصاب درغم چربو » وه .

دفلسطینیانو ضد سیاست ، مسلمانان بیا مخصوصاً دمنځني ختیز هیوادونه روسانو ته نژدې کړي وو، په ایران کې دامریکابیانو نظامي ناکامۍ دوی په خپل نظامی اهلیت او تکنالوژی بې اعتباره کړل ، دروسانو په مقابل کې امریکابیان لاس تړلي و ، زما په یاد شي چې دبي بي سي خبرنګار دامریکې جمهور رئیس ښاغلي جیمي کارتر نه پوښتنه وکړه چې ته وایی : یعنې لیونید بریژنیف دروغ وایي هغه ورته په ډیره وارخطایی وویل نه زه نه وایم چې لیونید برژنیف دروغ وایی بلکه وایم چې دغه خبره یې حقیقت نه لري ، معنی داچې ډیر احتیاط یې کاوه .

دافغانانوجهاد دوی ته غیر قابل تصور و .

په دغه وخت کې یوه کمیټه د ( کمیټی فار فری افغانستان ) په نامه جوړه شوې وه ددوی زیات کار امریکاییانو ته دافغانستان معرفي وه له مانه یې ډیر جدي خواهش داو چې باید نظامي مرستې ونه غواړم ، چې دامریکاییانو دجنګ او جنګ بازۍ نه بدراځي ، یوازې او یوازې دروسانو ظلمونه بیان کړم او انساني او بشري مرستې وغواړم او په عین زمان کې دکمیټې لپاره ښه تبلیغات وکړم ، چې وسعت پیدا کړي .

اول کمکونه نه وو، بیا چې څه ناڅه کمکونه پیدا شو دهغې دانتقال او راوړلو لار او طریقه نه وه، جناب مجاهد حبیب جان مایار په ډیره

خواری څه ناڅه پیداکړی و ، څه سامان او کالي او نولس جوړه بوټ په کلیفورنیا کې پیداشوی وو، چې ټول دهغوی دانتقال ته حیران وو ، بیا درې ټیمه تشکیل شول .

دسناتور گوردن همفری ترمشری لاندې سیاسي فعالیت ، دکانگرسمن چارلي ولسن ترمشری لاندې نظامي فعالیت او په سپینه ماڼۍ کې دجمهور رئیس دپاره دهغه خاص دفتر رئیس چې وروسته دکلیفورنیا دیوې منطقې کانگرسمن شو دی نه روره باکر وو او دکمیټې فار فري افغانستان خدمتونه په ټولو ساحو کې دیاد اوقدر وړ دي .

دهیچا داعقیده نه‌چې په افغانستان کې به روسان ماته وخوري او ددوی قواوې به په شکست افغانستان پریږدي . دواشنگټن پوست مشر دعوت راکړ او تپوس یې وکړ چې صافی کله به جهاد ختم شي ماوویل کله چې کمونسی نظام له منځه ولاړ شي هغه په خندا وویل چې کله به مجاهدین ختم شي ، ما وویل زموږ مجاهدین زیاتیږي او د زړو پر ځای ځوانان صفونو ته داخلیږي راشه کمپونه وگوره چې یوشهید شي پنځه نور تولد شي .

ټولو داتلاش کاوه ، چې که وکړای شي دروسانو پسې په افغانستان کې ټینگ شي ، دامریکایی دوکتورانو د استخدام مخالف وو ، دوی داویلې چې دافغانانو له امریکایی دوکتورانو نه بد راځی په همدې خاطر پیسې به یې اروپایي دوکتورانو ته ورکولې ، دوکتور باب سایمن خپل شخصي کور خرڅ کړی و او غوښتل یې چې افغاني زخمیانو ته صحي مرکزونه جوړکړي، او له حکومت نه یې دمرستې تقاضا کړې وه . زه دکلیفورنیا په سفر بوخت وم او شدید خواهش یې وکړ چې باید دیوې ورځې لپاره واشنگټن ته ولاړشم او دکانگرس ترمخې دده لپاره دکمك تایید وکړم په کانگرس کې ډیر زیات کسان ټول شوي وو ، یو تعداد

کسانو دده ددرخواست پرضد نظرورکاوه .

مادخپلو خبرو په نوبت کې وویل چې افغان زه یم او خبرې تاسې کوئ، دا احمقانه خبره ده چې موږ وسله مهمات او لوژستیکي مواد او نور شیان غواړو ، دهغو نه موبد نه راځی او امریکایي دوکتوران نه غواړو ؟ هرڅوك چې تاسو نه غواړي افغانستان ته ولاړشئ زه یې په ضمانت بیایم او هیڅ امریکایي ضد خبره نشته ، پس له هغې بیا کانګرس دوکتورباب سایمن ته منظوري ورکړه او ای ام سي په ناصر باغ کې جوړ شو .

له امریکاییانو سره دافغانانو دمیزبانی په هکله جنرال محمد ضیاالحق ډیره موفقانه معامله وکړه او خپل شرایط یې په امریکاییانو او اعرابو ومنل . دپاکستان داردو قانوني ساختمان دهر جنرال نه نړیوال شخصیت جوړولی شي . جنرال محمد ضیاالحق خان چی ډیرزړور جنرال او باتدبیره سیاست مدار و امریکاییان یې قانع کړل ، چې پاکستان داخرین سنګر په نامه دامریکاییانو دمنافعو ساتندوی دی او مخکې تر دې چې جهاد خپل اوج ته ورسیږي اصولاً باید مدافعوی خط چې پاکستان دي تقویه شي ، دا اول ځل دی چې په نړۍ کې تر هغې چې زما ورته فکر رسیږی سی ای ای دپاکستان دای اس ای په پت وګرځیدل ، دافغانستان دجهاد په هکله ای اس ای دسی ای ای یو حرف هم ونه مانه ، مګر خپل ټول فرمایشات یې په سی ای ای ومنل ، چې دا واقعاً قابل تمجید یو عمل دی . په همدې راز جنرال محمد ضیاالحق خان دافغانستان دجهاد نه په استفاده په عربي نړۍ کې اسلامي مومنټ او جنبش یو ځل بیا راژوندی کړ ، له یوې خوانه یې داعرابو دتیلو مفتو ډالرونه دخپل هیواد په ګټه استفاده وکړه ، له بل خوا نه په نړیواله سطحه داسلام دمقدس دین علمبراد وګرځید .

کله چې امریکاییان پوه شول چې دروسانو پښې په افغانستان کې ټینګې شوې ، نو بیایې سیاسي نماینده یاد مجاهدینو لپاره سفیر پیټر تامسن تعین کړ ، تامسن هم پاکستاني مقاماتو ته خوش آمدیا غوړه مالي ماسوا بله چاره نه و . دا اوازه چې امریکاییان او اعراب او پاکستانیان داعلیحضرت مخالفت کوي، داخبره غلطه وه ، له اعلیحضرت سره دهیڅ دښمني نه وه ، یوازې او یوازې اهدافو فرق کاوه او هغه داوو چې داعلیحضرت په راتګ دصحنې منځ ته مسایل او قضایاوې حل ته رسیدلې ، چې داکار امریکاییانو او نورو نه غوښته .

دامریکاییانو یوازینی ارزو روسانو ته نه هیریدونکی مجازات ورکول وو . له اول نه دافغانانو په قصه کې نه وو دامریکاییانو دهر ډالر په بدله کې چې هغه هم دعرابوو په افغانستان کې دروسانو دلسو نه زیات مصرف شول تر اخره پورې امریکاییان دقضایاوو دحل طرفدار نه وو . په همدې خاطر یې دضرورت په وخت کې لازمه اسلحه نه راکوله یو ځل بیا وایم چې دروسانو وتل ، دکمونستي نظامي سقوط او دمجاهدینو موفقیت هیڅکله دامریکاییانو اجندا نه وه . امریکایي مقاماتو څو څو ځله په صراحت سره ویلی دي ، چې افغانستان روسانو ته زموږ دویتنام نه لازیات سخت او مشکل شو ، دافغانانو دشهیدانو وینې امریکاییانو ته سیروم وګرځیدل او دکومانه ووتل او مړه ژوندي شول خو افسوس چې په موږ کې داکفایت نشته ، چې په خپل ارزش پوه شو او په ارزانه او مفت خرڅ نه شو .

پیټرتامسن چې زما دوست او ملګری و په صراحت یې ماته وویل چې دروسانو دوتلو نه وروسته په افغانستان کې یوازې نجیب موږ ته دکمونستی نظام سمبول دی ، موږ به تر هغې فشار ساتو څو نجیب دقدرت نه لرې شي ، بیا دامهمه نه ده چې څه کیږي او څوک راځي ؟

هغه امریکاییانو چې له ما سره جهاد ته تللي وو او ویل به یې « زنده باد مجاهدین اومرده باد شوروي » اوس په ډېره بې حیایي وایي چې صافي داستاسو کار دی ، معنی داچې په امریکاییانو کې داخلاقي مسوولیت احساس نشته . له موږ سره یې دمعاملې دیو شریك په صفت معامله ونه کړه ، بلکه موږ ته دوسیلې فکر کوي ، ددوی ټول تلاش دادی چې کمونست یې په اسلام مات کړ او اوس مسلمانان په خپل منځ کې ضعیفوي . اوس چې یې مطلب وشو ، پاکستان ته ځانته بهانې لټوي او افغانانو ته ځانته، دنړۍ په هرګوټ کې چې دترور او مخدره موادو خبره پیښه شي اوس افغانان یادوي . پرون مقدس جنګ بازان وو نن تارپاکیان او چرسیان شول . اوس چې پوه شل چې موږ کې څه پاته نشو، په ډېره ټیټه سطحه افغانستان یادوي او ملل متحد تشویقوي په سیاسي لحاظ امریکاییانو هیڅکله افغانستان په لاس کې ونه نیوه پخوا یې روسانو ته پرېښې و اوس ګاونډیان ماته ډېرو امریکاییانو ملګروولې چې کاشکې تاسو تیل درلودلی ، امریکایي سیاست ( به هر چمن که رسیدی گل بچین وبرو - به پای گل مه نشین که عاقبت خار است )

# Committee for a Free Afghanistan

*(Member of the Coalition for Peace through Strength)*

214 Massachusetts Avenue, N.E., Suite 400, Washington, D.C. 20002 • (202) 546-7577



Novmeber 21, 1988

Brig. Gen. Rahmatullah Safi
National Islamic Front of Afghanistan
Kababian/Warsak Road
Peshawar, Pakistan

Dear General Safi,

Your visit to America was extremely well-timed and valueable. You have the distinction of being the first Afghan to strongly speak out on the need for more Stingers for the mujanideen. This made your visit a great success.

I wish the Alliance delegation led by Prof. Rabanni would have been as bold. Although I counseled them to make the request for more and immediate U.S. assistance including Stingers and Spanish 120 mm mortars to counter the Soviet escalation of the war, to my utter disappointment the Afghans did not make this request when they met with President Reagan, President-elect George Bush and Secretary of State George Shultz. It was a missed opportunity! And opportunities like that don't happen very often. In fact the Alliance met with President Reagan only three times in eight years.

# مسوولین څوك دي ؟

داېو معلومدار حقيقت دی ، چې افغانانو ډېر تاوانونه ولیدل او مملکت خراب شو . ددې هيواد او دهې وګړو بيرته پخوانی حالت ته راوستل ، عملي نه ښکاري داټول وايو چې سياسي عدم کفايت و، داوايو بې اتفاقي وه ، دا وايو قدرت طلبي وه او داهم وايو چې بهرنۍ مداخلې وې. دغه څه چې وايو حقيقت لري خو داولې ؟

دغه حالت چاراؤست ؟ ولې‌یې‌راؤست ؟ ولې زمينې دغه پورتنيوبدبختيو ته مساعدې شوې ؟ راکټ ويشتونکي ملامته وو ، بايد ملات شي ، غله په غلا ، بې ناموسان په بې ناموسۍ ، قاتلان په قتل ، جنايت کاران په جناياتو ملامت دي ، بايد ملامت شي خو داولې؟ چادوی ته دغه زمينه برابره کړه ؟ تر اوسه دې موضوع ته دچا فکر نه دی تر دې عنوان لاندې ليکنه کې بعضې سوالونه پيدا کيږي ، چې په حقيقت کې تاريخي مسووليتونه دی ، چې دسوال اويا دسوالونو په ذريعه بعضې کسانو ته متوجه کيږي .

شايد اکثرافغانان داووايي چې دجرنګانيو حلقه به جوړه شي خو دپيشو

غاړې ته به يې څوك واچوي ، دتوپونو او راکټونو په آوازونو کې به دغه دجرنګانو آواز دچا غوږونه ورسيږي . بله داچې دا خو دمافيا باټو دى او هريو ځانته ګادفادردى . که قاضي ته پوليسو دقوماندان له لاسه شاکي شي قاضى په خپله مافيا وى ، ه ګورنرياوالي ته شاکى شي هغه مافيا وي خليفه خو دګاډفادرو ګاډ فادر دى.

ددى دوستانو جواب په نړيواله سطحه د ١٩٩٤ اخر او ١٩٩٥ کال په اوايلو کې ورکړ شو . معنى داچې ددوهمې نړيوالې جګړې جنايتکاران دپنځوسو کالونه وروسته تقبيح او مجازات شول . تر اوسه لايهود په فاشيستانو پسې ګرځي او انتقام اخلي . او زما هيله داده چې افغانان ديهودو کم نه وي او دوخت سره سم په خبرو ، ليکلو او په ټوپك خپل انتقام واخلي داځکه چې په اسلام کې ظالم او مظلوم معنى يوه ده . دظالم مخه بايد مظلوم ونيسى په کال ١٩٩١ له يوې خوا دنجيب پښې په سټوپيدو وې او له بلې خوا دامريکې له سفير پيټر ټامسن او بيني سيوان هلې ځلې په شدت سره رواني وې داهم معلومه ده چې انګليسان په عفوى عادت نه لري او انتقام اخلي او دانتقام په اخستلو کې ډير باصبره او باحوصلې دي . امريکاييان چې څه په زړه ولري هغه په خوله راباسي او ځاى پرځاى زړه يخوي خو انګليسان هرڅه په زړونو کې ساتي او په خپل وخت کې يې راباسي .

دبرتانيې پادشاه (ملکه ) له‌يوې پيړۍ وروسته روسيې ته ولاړه او دخپلوانو هديره يې وليدله . دانګليسانو ذاتاً دپښتنو سره روغه نه وه، محمد داود خان يې پښتون باله . تره کى ، امين ، نجيب پښتانه وو حتى کارمل هم دوى په پښتون اوپانګبر بدل پښتون بادوه .

په مجاهدينو کې يې اخوانيان او وهابيان يې پښتانه بلل . که په نړيواله سطحه نه وه نو نيمه نړيواله دپښتنوضدحرکت شروع شو . دالله

پاك كم عقلان يعني امريكاييانو ته داخبره ډيره وروسته ورپاس شوه او وپوهول شول ډيرو لوړو مقاماتو به ماته په ډاګه ويل چې صافيه! بادشاهي دپښتنو ، كمونستي دپښتنو ، اخوانيت هم د پښتنو ، تركله به دغه پښتانه وي ؟ مابه په ډيرو معقولو دلايلو دوی قانع كول ، ټامسن چې زما دوست و په ډيره سختۍ قانع شو.
دبېن سيوان هدايت وركړشوی مقصد داو چې دوسيع البنياده شوری په وسيله دې عبوري حكومت جوړ شي . چې دچا دتوافق او دچا له مخالفت سره مخامخ شو . دوسيع البنياده شوری معنی داوه چې په كابل كې دوه مليونه شاوخوا افغانان ژوند كوي دهغو نه دې څوكسان چې دحزب غړي نه وي او ددولت همكار نه وي پخوانۍ ښه سابقه ولري.جمعاً اته كسان ، لكه جنرال كتوازی ، پوهاند اصغر او همدسې نور . څو كسان دې دمجاهدينو دمشرانو له خوا په غربي هيوادونو كې دافغانانو دنماينده ګانو په صفت تعيين شي ، نور ټول سهم دې دمجاهدينو وي .
په دې فورمول كې ځينو وويل چې دكابل نه نماينده ګان نه منو ، ځكه چې هغوی دكمونستانو تر حكومت لاندې ژوند كړی دی . دخارج افغانانونماينده ګان نه منو ، ځكه چې هغوی په مسلح جهاد كې اشتراك نه دی كړی ، په همدې خاطر دوی له سياسي حقوق نه محروم دي .
موږ څوقوماندانانو ملګرو لكه حاجي عبدالحق ، قاضی امين وردګ ، محمد انورجګدلك ، اختر محمد ټولواك غوښتل چې بېن سيوان دشوری پروسه په خوست كې دقوماندانانو دريمې سرتاسري شوری ته محول كړو او دهغوی تصويب او تاييد واخلو له بده مرغه چې دمجلس نه مخكې دمولوي نظام الدين ، دحقاني دمعاون په شديد مخالفت سره برابر شوو ، هغه پرې فتوا وركړه چې ملل متحد يوه كفري دستګاه ده موږ دهغوی پروسې او پلانونه نه منو دهغه دفع سيد هادي هادي

دمحسني ستر قوماندان او دشورئ غړي وکړه هغه مولوي نام الدين ته
وويل : هغه وخت کې چې ملل متحد په افغانستان کې دروسانو اعمال
غندل او په اکثريت يې دروسي قواوو له اخراج فيصله ورکوله کفري نه
وه اوس کفري شوه؟ دملل متحد په اعضاوو کې زيات کسان مسلمانان
دي ايا ته په هغو هم داحکم کوې ؟ مولوي چپ شو خو زموږ کاريې
سخت کړ .

په هر صورت دقندهار دقوماندانانو او علماوو په همکارۍ مو دشورئ
دعالي مجلس د څه ناڅه قيوداتو په منلو سره ، توافق واخيست .
دشورئ په جريان کې مو دخوست له ژوروېته تخار کې دامر صاحب احمد
شاه مسعود سره په مخابره کې خبرې وکړې ما او حقاني ورسره دوه دري
ځله خبرې وکړې .

دشوري دجريان په مقصد مو پوه کړ بله مهمه خبره داوه چې که نجيب
ناگهاني سقوط وکړي ، دقوماندانانو سرتاسري شورئ مشترکه
ستراتيژي او پلان بايد موجود وي او دانقلابيونو داطبيعت سره سم بايد
دانقلابي شورئ په هکله سوچ او فکر وشي . ورته مووويل چې يا دې
راشي او يا دې خپل نماينده جناب محمد يونس قانوني ته صلاحيت
ورکړي ، دهغه جواب زيات نه زيات سياسي شکل درلود ، وې ويل چې
زه به قانوني سره خبرې وکړم خودايې ونه ويل چې صلاحيت به ورکړي .

دهندوکش دشمالي خواو افغانستان سره زما تشويش هميشه نن او
دوامداردی . دپخواني پاشوروی خاين گاونډي منفي تاثير ،
داوسيدونکو وگړو اجتماعي ساختمان ، اراضی ، طبيعي منابع د دواړه
خواوو سرحدي روابط او نور شيان زما دتشويش سبب گرځيدلي دي ، او
داهم بايد ووايم چې داخلي خاينانه لاس وهنې هم شته دي .

دهندوکش جنوب خواته افغانستان ته ماهيڅکله دداخلي او خارجي

خطر احساس نه کړی او نه یې کوم . که زموږ له خوا نیتونه خراب نه وي دګاونډي هیواد پاکستان نیت نه خرابیږی او که خراب شي بیا هم امکانات یې نشته او محدود دي .دهندموجودیت او دغتو قبایلو موجودیت او تر ټولو مهمه دسرحد په اوږدو کې دپښتنو او بلوچو قبایلو موجودیت د پاکستان خطرات له منځه بیایي . په دغو قبایلو کې دافغان دوستۍ او افغان پرستۍ احساس ډیر دی .

زه دپاکستان نژدیوالی دافغانانو په خیر بولم .

په همدې خاطرما په ۱۹۸٦ کال یو سفر دهیواد شمالي ولایاتو ته وکړ او اصلي هدف مې دجهاد متعلق مذاکرات او ځینې نور مسایل وو . چی له جناب سید منصور نادري سره وشول . او دادې دوم سفرو د ۱۹۹۱ کال دقوس دمیاشې اخر کې په دوه میاشتني سفر شمالی افغانستان ته ولاړم . په دې سفر کې مادوه هدفه درلودل یو داچې عمومي سیاسي اوضاع مطالعه کړم او بله داچې مخصوصاً له سترو قوماندانانو سره وګورم او دهغوی په ذهنیت پوه شم چې دقدرت دانتقال په هکله دمسوولیت څه احساس لري او څه پلان لري او زما دنظر په هکله څه وایي .

په دې سفر کې زما ملګري دمیدان قوماندان سید نعیم ، دبغلان قوماندان ارباب فراموز خان ، دغاځیو قوماندان رحیم جان وو ، دلارې واورو او ددشمنانو خطرات او دسفر سرګذشتهچې له دې موضوع نه خارج دی ، دابه قیچي کړم . په دواب دسمنګانو دغرونو په تنګي کې مې دجناب ازادبیګ مرکز او عمومي قرارګاه ولیدله . له اسلام کریموف سره یې دمخابرې ارتباط موجود و ، ددوستم یو قوماندان دابراهیم بیګ لمسی چې له کندز نه ازادبیګ ته راغلی و او دملی اسلامی محاذ له لارې زما اشناو ، په اربکستان کې ددوستم دصاحب منبانو دټریننګ او

دترکي منصبدارانو همکاری.خبري يې ډيرې وکړې .

په همدې شپه دمير ولي په کوټه کې چې دارباب فراموز دوست او ملګري و مولوي صاحب له ارباب فراموز سره په جنګ او جګړه شو ويل يې چې نور موږ هغه پخواني کله خام ازبك نه يو اوس مواسلحه په لاس کې ده اوازبکان به پس له دې په سلاح خبرې کوي .

تخار ته زما له رسيدو نه دوه ورځې مخکې امرصاحب مسعود دهغه دملګرو په قول پنجشير ته تللی و .که څه هم زما له راتګ نه خبر و ، خو دملګرو په وينا چې دحکمتيار دکودتا راپور ورته ورسيده په ډيره عجله ولاړ . دامر صاحب ملګرو په لوړه سطحه زموږ عزت دارای او ميلمه پالنه وکړه . په دوهمه ورځ خبر ورسيده چې په ينګي قلعه کې دامر صاحب متحدينودپښتنو په کورونو حمله کړې ده او ډيره بې عزتي يې ورسوله په همدې خاطر دپښتنو قوماندانو، لکه دمرلوي خالص قوماندان حضرت خان جبارخيل او دسياف قوماندان انجنير محمد عمر او دملي اسلامي محاذ قوماندان سيدمختا او همداسې نورو ترمنځ جرګې او غونډې شروع شوې ، خبرې ورځ په ورځ خطرناکه کيدلې په دې مسايلو کې جناب دوکتور عبدالله او دامرصاحب دلوژستيك امر جناب شمس الرحمان مداخلې وکړې او فکريې کاوه چې مسايل به حل شي او هغه دکورونو نه تبتيدلي پښتانه به بيرته په ځای شي .

په بازګشت کې کله چې کيان ته ورسيدلم ددوی په ګفته دتاجکستان پنځه وزيران هم راغلی وو. زه په ټول سفر کې مخصوصاً دخاد دفرقې قوماندان دناصر خان نه ډاريدلم. او کله چې کيان ته اوبيا په بل عبارت دسيدمنصور نادري قلمروته ورسيدم نور بيا دچانه نه ډاريدم ، ځکه چې هغوی له ډيرې زمانې نه پخوا زما نژدې دوستان دي .

په دې سفر کې مخصوصاً په يوه حادثه ډير مايوسه شوم هغه داچې

مولوی اسلام دسمنگانو دحاجي نورمحمد تاتار د سرخ دیوال ړول د راو
ندار چورکړی وو اوداسانو مخصوص نسل دذات گرك تاتار دهیواد ، ه
ورك شوه . ځوك چې داسانو شوقي دی هغوی پوهیږی چې ذات گرگ
تاتار څه خصوصیات لری .

وکیل صاحب حاجي نور محمد خان دهغه اسانو تربیان ورکول ولې
مادیان یې له لاسه نه ایستل . خو متاسفانه چې مولوی اسلام له منځه
یوړل او زیاتره یې مړه کړل .

بیا هم غواړم چې دسفر قصه او داستان قیچي کړم او په اصلي موضوع
لیکنه وکړم کله چې دپنځری کوتل نه دځدرانو سیمې ته راواوښتم
ملگرو ته مې په خندا ویل چې اوسنو انشاالله ژوندي بیرته راورسیدو .

دسفر ټول جریان او هیواد ته احتمالی خطرات مې الحاج حقاني ته
وښوول او وویل حکمتیار په لوگر کې و له جناب قطب الدین هلال سره
مې دوه ساعته ددوی په سیاسي مهمانخانه کې په مسایلو خبرې وکړې
اودامې ورته وویل زما له خوا حکمتیار سره وگورئ . بیا افغانستان
ته ولاړم او په شمشاد کې مې استاد سیاف ولیده او هغه مې هم په
مسایلو خبر کړ او په صراحت مې ورته وویل چې له هیواد سره احتیاط
په کار دی او زه دخطر احساس کوم نور بعضې کسان مې هم ولیدل
دگردیز اخري جنگ ته دروانیدو په وخت کې په پیښور کې دیېن سیوان
معاون ( ترکی ) کورته را غی او وی ویل چې مزارشریف ته تللی وم
او له دوستم سره مې دبیېن سیوان په هدایت ملاقات وکړ ، بیېن سیوان
ډیر مایوسه دی او دقدرت هغه ډول انتقال چې ځینې افغاني مشران یې
غواړي په ترېواله سطحه قابل قبول نه دی . تاسو افغانانو خپل کار په
خپله وران کړ . تاسو باید وسیع البنیاده شوری منلی وای . خالص
اسلامي نظام څوك نه مني او دقدرت دانتقال په وخت کې به ډیرې گډ

ووړی راشي . دغه خبره ذاتاً معنی لري . گردیز بې جنگه تسلیم شو . حقاني اویو تعداد قوماندانان لوگرته ولاړل . دیو قوماندان په میلمستیا کې دوکتور حشمت الله خان مجددي هم و چې دماښام له ډوډی نه وروسته په عجله کابل ته ولاړ .

حقا ني دمخابرې په وسیله پیښور کې مولوی عبیدالله او خپل خاص نماینده جنرال عمر ځدران ته وظیفه ورکړه چې مولوی محمدؐاو مولوی خالص وگوري او ورته ووایي چې دقدرت دانتقال په هکله عجله ونه کړي باید هرڅه واضح او معلوم شي ، څو په اینده کې جنجال پیښ نه شي . په جواب کې هغوی ویلي وو چې سیاف دې وگوري دوی بیا سیاف هم لیدلی و او بیرته یې موږ ته اطمینان هم راکړ . دوه ځله مو په مخابره کې دمسعود نه خواهش وکړ چې بې له عمومي مصلحته نه عجله ونه کړي اوکابل ته داخل نه شي .

دحکمتیار او مسعود دقواوو ترمنځ مسلحانه برخورد کې دشپې له خوا دلوگر سرخاو ته ولاړو او حکمتیار مو ولید . په صراحت سره مو ورته وویل چې جنگ دې بند کړي څو چې موږ کوشش وکړو اودمصالحې لاره پیدا کړو . هغه هیئت چې مشرېې دوکتور شمس و ډیر موده په پیښور کې وواو بیا په شوروي کې دبیرك له ډلې سره په تماس کې شو اخبارونو هم بیا پرې تبصرې وکړې دریشخور فرقې قرارگاه ته ورسیدو ، قوماندانانو ډیر شیان وویل او دکابل په هکله یې قصې وکړې .

مسعود دچهلستون ماڼی موږ ته حواله کړه ، خوله اشغال نه یوه ورځ مخکې متاسفانه دراکټونو دلگیدو په اثر وسوځیده او موږ خپله قرارگاه په ضمیمه تعمیر کې تاسیس کړه .

دوه ورځې وروسته امر صاحب مسعود میلمستیا وکړه حقاني اوڅلو زیات نور قوماندانان یې وغوښتل ماښام تشریفاتي موټرسایکل دار

ترافیك منصبدار راغلل او دنبار په لوړ مو حرکت وکړ .
دترافیکو مشر منصبدار وویل چې دچهلستون دارالامان ، دهمزنګ اوښارد امر صاحب میلمستون لاره بنه ده . کله چې زموږ دموټروقطار ددارالامان سړك ته داخل شو اوبو څه په مخکې ولاړو یو ناڅاپه دنااشنا قواوو له خوا محاصره شوو . له موږ سره یوازې امنتی خفیفه وسله وه ، جنګي احضارات مونه درلودل ځکه چې میلمستیا ته روان وو .
ټانکونه رانه چهارپیر شول ، یو منصبدار ته ما دامر صاحب دمیلمستیا خبره وکړه ، ماته هم په غصه شو او امر صاحب ته یې بدې خبرې وکړې.
بیا ماورته وویل چې هرڅه وایی ماته یې ووایه خو امر صاحب غایبْ دی او دابنه کار نه دی . حقاني ماته وویل چې خاموشی کې مو خیر دی.
دامر صاحب له خوا فعالیت شروع شو جناب قانوني هم ډیر کوشش وکړ خو په پای کې دجناب فهیم صاحب تلاش مفید واقع شو او موږ یې له دوو ساعتو وروسته ازاد کړو ، دمیلمستیا نه وروسته بیا دنمایش نه تیرشوو او دجنګلك په لاره داسې راغلو چې یو څه فاصله مو خپلې قواوو مخې ته راوغوښتلې له همغې ورځې نه مو دمصالحې دهییت په صفت چې خپله موځان تعین کړی و دمتخاصمو ډلو ترمنځه دسولې دراوستلو لپاره کار شروع کړ . دحکمتیار لیکلې تقاضاوې مو واخیستلې او ماده وار واضح وې امر صاحب بیا سیاسي لیکنه وکړه او وی لیکل هغه څه چې ما په مجلس کې وویل دهغو داجرا متحمل یم . خوواضح او معلومدارېي ونه لیکل .
چې څه یې ویلي وو او دځه شي داجرا متحمل دی دسهار اته بجې وي امر صاحب خواهش وکړ چې ولاړ شي دسیاف اووحدت دواړو ترمنځ مصالحه وکړي ، ددوی برخورد کوټه سنګي په شاوخوا کې روان و . بیا

هم له قطار سره ولاړو .
کله چې دکارته چهار نه دښار خواته رابازگشت شوو دهمزنگ ته نارسیده دوحدت افراد و دسړك په دواړوخواوو کمین راته نیولی و او شدیده حمله وشوه . په دې حمله کې ماشیندار اوراکټ انداز هم ډیر استعمالیدل .
دغو افرادو داسلحې په استعمال حاکمیت نه درلود . معنی داچې دوی مجاهد نه وو . ددې حملې په نتیجه کې موږ تلفات ورکړل موټر اوسلاح موله منځه ولاړه په ډیر مشکل اودیو قمار په شکل زه او حقاني له صحنې نه په فرار موفق شوو ، کوڅه په کوڅه جګړه ، کور په کور چور او چپاول یوه عادي خبره وه .
دسترې محکمې ټول اعضابندیان وو او مرګ تهدیدول په نیمه شپه کې یې فرار وکړ ، حاجی دین محمد خان دمعارف وزیردوژلو له ویرې فرار وکړ ، دننګرهار په قوماندانانو په میلمستونکې حملې وشوې .
دمسعود قوماندان جنرال دین محمد خان په بالاحصار کې دجنرال جرمن له خوا مړشو او مړی یې لغ په پیټۍ کې اچولی و او چاته اجازه نه وه چې نژدې شي . دمسعود هیبت یې په ډیره بې عزتۍ رخصت کړ. محمد قاسم خان لوی څارنوال باندې حمله وشوه ، دکور له چور نه علاوه یې وهل او ټکول هم خوړلي وو په ترتیب سره دټولو رهبرانو موټر چور شول ، په نتیجه کې حالات هغه دي چې ټول یې ګوري .
دحکمتیار له ویرې ، مجددي دکابل له ښار نه ددوستم دقواوو دایستلو مخالف و . یو تعداد قوماندانان او مجاهدین چې دکلونو راپدې خوا دکابل ( چې دوی به ورته کابل جان وایه ) په انتظار وو بې عزته شول مالونه او موټر یې چورشول او مایوسه بیرته ولاړل .
ددې پورتني لنډ جریان نه وروسته ځینې سوالونه ځینو اشخاصو ته

متوجه کیږي :

۱- امر صاحب احمد شاه مسعود څو څو ځله ویلي دي چې ما سیاسي قدرت دځان لپاره نه غوښته په همدې خاطر مې دتنظیمونو رهبران رادعوت کړل چې متحداً راشي او قدرت واخلي دوی دپاکستان بې اتفاقي له ځانه سره کابل ته راوړه یعني امر صاحب تاریخي مسوولیت درهبرانو په غاړه اچوي او رهبران هم تر اوسه پورې متوجه نه دي په پورتنۍ لیکنه کې واضح او ثابته شوه چې دکابل قدرت او اختیار هیڅوخت دامر صاحب په لاس کې نه و.

بلکه ده په خپله په عذر او مخصوصاً دفهیم صاحب او عبدالله صاحب په همکارۍ او وساطت داحتیاج شپې تیرولې . نو ولې دوی سیاسي رهبران راوغوښته ؟

۲- رهبران نوبتي سیستم په کوم اسلامي او غیر اسلامي کتاب کې لیدلی و، چې له هغه نه دوی کاپي کړ . ددې دوه میاشتو او څلور میاشتو له نوبت نه هدف څه و او ولې ؟

۳- چا دغه پروسه او په کوم منطق اختراع کړه او له دې کارنه یې هدف او مقصد څه و ؟

٤- دتنظیمونو مشرانو په کوم منطق دغه پروګرام ومانه او په کوم اطمینان یې کابل ته دحرکت اجازه ورکړه ؟

٥- جهادي شورى دچاپه اطمینان او ولې راغله دراتګ هدف یې څه و او څه یې وکړل او څه نتیجه یې په لاس راغله ؟

٦- مجددي صاحب په کوم منطق دچا په اعتماد ولې ددوه میاشتو پادشاه بې قدرته او بې اختیاره شو او خپلو کارنامو ته څه مشروعیت ورکوي ؟

۷- مورخین همیشه ادوار لیکي ، که څه هم کشتار او خرابۍ نوروکړې

خو دا دوره داستاد رباني دخلافت په نامه دوره يادېږي . په دې هکله داستاد جواب څه دی ؟ مطلب دادی چې مورخين به دنورو په هکله ډېر مختصر وليکي ولې داستاد په هکله به دتاريخ دتورې دورې په نامه ټول کتاب وي په راتلونکی تاريخ کي به دقصې او داستان يا دقلم هيرو او قهرمان استاد رباني وي . دغو مسايلو کې دده ځواب څه دی ؟

٨- که داستاد رباني او حکمتيار خبره يو لورته کړو دې نورو رهبرانو څه اسلامي او يا څه ملي مثبت عمل اجرا کړ ؟ مطلب دادی چې دوی هريو په خپله برخه کي کوشش کړی دی چې اورتازه کړي او د اور دخاموشی تلاش هيڅ وڼه کړي. ټولو اوبه خړولې او ماهيان يې نيول ، داولې ؟

٩- دوروستنيوائتلافونو او اتحادونو هدف انتقام - خودغرضې او وطن خرابی وه که دمشکلاتو حل ؟

# نظامي تحليل

شايد ډيرو افغانانو او حتى خارجيانو ته داسوال پيدا شي ، چې ددې تحليل ضرورت څه و ؟ دهغو جواب به داوى چې دوى جريانات او ګزارشات نه دي تعقيب کړي . او هغه چاچې اخبارونه او داخلي او خارجي نشرات تعقيب کړي وي هغوى ته به دغه تحليل ډير دلچسپه وي او دابيا حق لري چې يايې رد اوياتاييد کړي . په هر حال څرنګه چې وګړي له تحولاتو سره سم دخپلو هيوادونو دارضى سلامت سوچ او فکر کوي ، مخصوصاً دجهاد دشروع نه راپه دې خوا دراتلونکي افغانستان په هکله هرڅوك خپل هر څه وايى . چاته تشويش پيدا شوى دى او څوك غرض او مقصد لري دطولانى جګړو په نتيجه کې د اکثره هيوادرو سياسي نقشې بدليږي او حدود يې تغيير کوي اما سالم قيادت عموماً د طوفاني سمندر نه ماتې کشتۍ ته نجات ورکوى . دکمونستي نظام په راتګ خاصتاً دشوروى قواوو ددخول په نتيجه کې دافغانستان

په هکله دوه فکره کیدل .

اول فکر داو چې دشوروریانو هدف دهند سمندر تودو اوبو ته رسیدل ، په منځني ختیز کې حاکمیت تامینول او د چین لپاره هندوستان سره نژدې کیدل وو . په هغه صورت کې دافغانستان دتجزیې پلان نه ، بلکه دافغانستان وضع الجیشی نه په استفاده دریل پټلی ، نظامي ستراتیژیکي بیسونه او حتی ذروي تاسیساتو جوړول وو چې په نتیجه کې افغانستان له اقتصادي لحاظه ښه کیده ، په ډیرو نورو ساحو کې به هیواد پرمخ تللی وې ، او په نظامي لحاظ د افغانستان په لور کتل به گران وو ، ولې دسترو او نړیوالو جګړو اساسي او اولي هدف به په افغانستان کې نظامي اډې تاسیسات ، دوسلو زیرمې، مخازن او دذروي وسلو محلات له منځه وړل وو . چې داونه شول نو دویم ډار داو چې د افغانستان شمال به د افغانستان جنوب نه جدا یا جلا جمهوریت کړي او یا به یې په گاونډیو جمهوریتونو تقسیم کړي . دشوروریانو متعلق دغه دوه ډاره ددوی دنظامي ماتې او دامپراطورۍ له سقوط سره له منځه ولاړل . یوشی یا یو خطر چې هغه لا خطرناکه دی دروسانو له خوا دانتقام په شکل پاته دی چې دبحث په دوام کې به راشي .

اوس دپنځلسو کالو جګړې په نتیجه کې دنړیوالو جاسوسي دستگاوو بعضې افغاني نیالگیو نه سترې ونې جوړې شوې دي . چې نا خود گاه دخپل هیواد دشمنان گرځیدلي دي . له یو خوا افغاني وګړي داسې آواره او په مصیبتونو اخته دي ، چې دسوچ او دفکر کولو توان نه لري . له بلې خوا انتصابي بې کفایته غیر ملي قیادت چې دهیواد له ورانولو سره سره بیا هم د بې کفایتۍ داعتراف توان او شهامت هم نه لري ، مستقیم یا غیر مستقیم څوک یې د پاکستان او څوک یې دروس ، ایران او هندوستان په مداخلو متهم بولي اوخپله کمزورتیا په نورو

تپی دا طبعي فورمول دی چې هر بیګانه چې ستا هیواد ته صادق و خپل ته خاین دی که نشراتو ته وګورو څوك لیکي چې پاکستان غواړي افغانستان خپله کالوني او مستعمره کړي ، څوك وایي چې پاکستان او افغانستان یو ځای کیږي څوك وایي چې پاکستانیان د افغانانو په مسایلو کې مداخلې کوي . مشابه تبلیغات د ایران په هکله هم کیږي . دجهاد په کلونو کې زما تر مخې بعضې رهبرانو له جنرال حمیدګل نه حواهش کاوه چې ولاړ شي او دهغوی جبهات وګوری له یوې خوا په نړیواله سطحه جناب استاد رباني له جنرال حمیدګل نه خواهش کوي چې زموږ دافغاني اردو تشکیل راته جوړ کړه آیاافغاني جنرالان نه وو ؟ ، دبلې خوا په سفارتي سطحه دجنرال حمیدګل له مداخلې نه شکایت کوي او راپوورونه یې دامریکې حکومتي مقاماتو ته ورکړي دي . داخبار په اول مخ کې په غټ عنوان لیکي چې دپاکستان سرحدي پولیس یو افغان په لغته وواهه یا افغاني مهاجرته یې بد اورد وویل . مګر دغه نه لیکي چې دوی ولې مهاجر شول او چا مهاجر کړل په خپله یې زخمي کوي په پاکستانیو او ایرانیو یې معالجه غواړي . په ټول هزاره جات کې دجناب آیت الله خمینی رسامي شوي عکسونه دافغانستان دغرو په جګو غنډیو په کانګریټی پایو اوچت شوي دي چې په خپله ایران کې کم پیدا کیږي ، چې داکار ایرانیانو نه دی کړی، پخپله افغانان چې دالوبې یې شروع کړې دي یو رهبر عرب ته بد وایی دبل رهبر باډیګاردان عرب دي ، یوبې پاکستانیان غندي د بل مشاورین پاکستاني دي ، په هرحال مداخلې او مستعمره کول فرق لری، پاکستانیان به هوښیار ښکاري ، خو دافغانستان په هکله مطالعه نه لري او یانه پوهیږي . هر هغه پاکستانی چې غواړي افغانستان ضعیفه شي هغه دخپل هیواد په ګټو هم نه پوهیږي داسې ښکاري چې

دوی دخپل هیواد په هکله هم عمیق او واحد سیاست نه لري . که دپاکستان اردو نه وي شاید له سیاسي لحاظه پاکستان له مشکلاتو سره مخامخ شي . هغو رهبرانو لکه رباني چې په خپل لاس دهیواد دقفل کلي پاکستان ته ورکړه دهغوی خوبونه تر ټولو نه زیات له پاکستان نه شکایت کوي . دا اولین افغانان وو چې دهیواد پرضدیې تخریبي درسونه زده کړل، او په دري سوه کلدارو نوکران وو.

دمداخلو په هکله زما عرض دادی چې په افغاني جامعه کې که دچا زوی دنامطلوبه ملګرو سره ګرځي سړی کوشش کوي چې خپل زوی دبیځایه ګشت نه ممانعت وکړي . ماڅو څو واره ویلي دي چې دجهاد په کلونو کې ددولسو نه زیاتو هیوادونو انتلجنس شبکو له رهبرانو سره له نژدې نه کار کړی دی چې اصولاً ددوی نه ملي او خالص افغاني زعامت نه جوړیږي .

څوك خپل اولاد ته دیو ډالر نه نه تیریږي هغه چا چې په ملیونهاوو ډالر بیځایه اخیستل په بدله به زموږ هیواد ورکوء هر هغه څوك چې دپاکستان مداخلې غندي بنه کوي بیا دې دعربو تورستونوسره دځانه سره په میاشتو میاشتو په یوه کوټه کې نه ساتي . ایرانیان دې دجنګ په ډګر کې له ایراني بیرغ سره نه پریږدي . دتاجکستان پنځه وزیران دې ترکیانو پورې نه راځي . دوستم ته دې ترکي منصبداران نه راځي ددوستم ترمیمات دې په خارج کې نه کیږي . دپاکستان نه دې ټول دفترونه ووزي .

زما ددې لیکنې اصلي مطلب دافغانستان دارضي تمامیت په هکله احتمالي خطرات دي . دمداخلو په خصوص کې تر هغه ځایه چې زما فکر رسیږي دکاسې لاندی نیم کاسه ده . اصلي مداخلې ، غرضي لاس وهنې زیات نه زیات په شمال کې دي خو کوشش کیږي چې دافغاني

وګړو پام او پل دپاکستان لورته راوګرځوي . که موږ باايمانه او با شهامته اوسو هيڅوك دمداخلو قدرت نه لري که څه هم دشورويانو دامپراطوري له سقوط سره سم دچين په لور چې شرقي ګاونډي دې څه ناڅه توجه جلبوي خو که کوم حرکت پيدا شي نو هغه به دافغاني نه زيات نړيوال وی. چې ماته په اوسنيو شرايطو کې ډير دتشويش وړنه ښکاري .

دغرب له خوا چې ايران دی زه لا تر اوسه هم دخطر ډير احساس نه کوم . معنی داچې ايرانيان به افغانستان ته دخطر اغاز کننده نه وي بلکه که خطر دبل لوری پيدا شي نو ايرانيان به برخه غوښتونکی اوسي. افغاني ټول شيعه هزاره نه دي او ټول هزاره شيعه نه دي . دافغاني شيعه ګانو افغانيزم دبل هر چانه قوي ښکاري ، مستقيمه رابطه هم نشته او تر منځه نور قومونه او قبايل پراته دي .

غربيان او خصوصاً امريکاييان په دغه منطقه کې دشيعه نفوذ اوطاقت ته اجازه نه ورکوي . په ايران کې دا توان نشته چې دنورو ګاونډيو په لور ايراني قواوې ضعيفه کړي او افغانستان خواته متوجه شي روسان هم دشيعه ګانو داسلامي نظام او دهغه دتقويې مخالف دی . پاکستان دايران له خوا افغانستان لور ته حرکت نه شي زغملای .

که دافغانستان جغرافيايي وضعيت په نظرکې ونيول شي دهندوکش دغره امتداد دشرق نه غربي لورته په ډيرو مسايلو چې جنوب ګاونډی پاکستان دی . دپاکستانيو انفرادي بې ځايه مداخلې چې دهغوی په ناپوهی دلالت کوي غندم او هر څوك حق لري چې بد ته بد ووايي . يو ځل بيا وايم هر هغه څوك چې دبل هيواد لپاره صادق شو خپل ته خاين دی ، په اوسنيو شرايطو کې له افغانانو ماسوا بل څوك داکار نه کوي. ( وايي مال دې ساته ګاونډی په غلا مه نيسه ) که موږ دچاوسيله نه

شو هیڅوک مو نشي استعمالولای داچې دهیواد ونو وګړي درایو په صندوق کې فرد فرد رایی اچوي او په پای کې یو سړی انتخابیږي دهمدې لپاره چې باید دزعامت اهلیت ولري، دچا په پټ ونه ګرځي او استعمال نشي . موږ بایدله خپلې طالع نه وژاړو چې په داسې وخت کې دداسې اشخاصو لاسونو ته لوېدلي یو .

هغه زما نه کې چې بې موجبه دسرزوری په نتیجه کې دپاکستان او افغانستان سیاسي مناسبات خراب وو ، بیا هم افغانان په کراچۍ ، پېنډۍ ، لاهور کې ګرځېدل . معنی داچې افغانان دپاکستان سره یو خاصه دلچسپي لري . دپاکستان خوراکي مواد دهمیشه لپاره افغانستان ته راتلل او راځي . اوس هم دپاکستان اکثر تجارتي مراکز دافغانانو په لاس کې دي . دپاکستان دعام ولس قرباني افغاني مهاجرینو سره په ډیرو دلایلو او اسبابو دقدر وړ بولم . په راتلونکي افغانستان کې که ملي او سالم قیادت راشي زه شخصاً په مختلفو ساحو کې دافغان – پاك نژدیوالی ددواړو ملکونو په خیر بولم . که څوك وایی چې موږ ورونه او دوستان یو دایوه بې معنی خبره ده ورورۍ او نژدیوالی په ګډ سود او زیان پورې اړه لري . که سود او زیان ګډوو ورورۍ شته او که نه وو، ورورۍ نشته .

که څه هم صریح بیان ته ضرورت نشته او شاید لازم هم نه اوسي ، خو دهغو کسانو لپاره چې وایي پاکستان غواړي افغانستان خپل داکړي یا هغه کړي داخیرې به یاناپوهی یا قهر غصې او احساساتو او یا پل او پام غلطو وې اوخپل شوم مطالب ته سره کړي . دغه شان خبرو او پروپاګندونو دتردید په خاطر لیکم چې دپاکستان له خوا اوس افغانستان ته دارضی تمامیت خطره نه لیدله کیږي .

۱- دافغانستان په سرحد پاکستاني مدافعوي قراو په افغانستان

تعرضي حرکات نشي اجرا کولای باید دهندوستان دخوا له سرحداتو اقلاً احتیاطي قواوې افغانستان ته دتجاوز په مقصد استعمال کړي . په هغه صورت کې کله چې ددوی قواوې له سنګرونه بیځایه او دتوپونو اوراکټونو میلونه یې افغانستان خواته وګرځي هندي قواوې به په برق اسا حرکت خپل له پخوانه پلان شوی اهداف اشغال کړي . او دپاکستان موجودیت به له خطر سره مخامخ شي .

۲- دپښتنو او بلوڅو له سرحدي منطقو نه دپاکستان داردو تیریدل ماته عملي نه ښکاري .

۳- په جنوبي افغانستان کې دشرق نه تر غربه پورې غټې غټې اقوام پراته دي ، لکه دشرق نه درانې ، کرړه ، غلجی ، کرره ، بیا درانی دی په دوی کې جنایتکاران شته خو تر اوسه ملي خاینان نه لیدل کیږي . ددوی دقواوو تیتیدل اسانه نه دی . دامړی دپاکستان په خوله غټه ده پاکستان خیټه ددې غذا دهضم توان نه لري .

٤- که داسې ومنو چې داټول وشول ، دوی چیرته ځي ؟ او څه هدف ري ؟ ددوی هدف یوازې جنوبي افغانستان نشی کیدای ځکه دوی نه وارې چې په لوی لاس اقلیت په اکثریت بدل کړي ، چې بالاخره ورته ری درد سر شي . دپاکستان له آزادۍ نه وروسته دوی موفق نه شول ې ملت واحد شي . شورویانو دسلو کالونه زیات واحد ملت جوړ نه کړ نتیجه یې معلومه شوه .

- که وغواړۍ چې شمال ته ولاړ شۍ او نهایي هدف شمال وي نو بیا کومه لاره ، څه وخت او څرنګه تللای شي ؟ لنډه داچې دغه خبرې اساسه ،پوچې ، میان خالي ، بې منطقه او غرضی کیدلای شي او ...

نغانستان دقضایاوو زړه دطبیعی منابعو ، اراضی او وضع الجیش په

خاطر نن وی که سبا او که کلونه کلونه پس دابه شمال وی . دطبیعي منابعو موجودیت ، دجاسوسی دستګاوو دفعالیت محراق ګرځي او دهغې په نتیجه کې به ملی خاینان تولیدوي او دغلامی نه آزاد شوی جمهوریتونوته هم دجاګیرداری شوقونه پیدا کیږي چې نوی خپلوان او خیښان پیدا کړي . دروسانو انتقام باید هیڅ وطن پرسته افغان فراموش نه کړي .

دجهاد په نتیجه کې په لاس ورغلی دډالرو تجارت په جنوبي افغانستان کې دډیرو باقدرته اشخاصو توجه ملي مسایلو مخصوصاً شمال ته پرده اچولې ده . دجنوبي افغانستان بې ثباتی هم په شمال تاثیر کړی دی اوشمال مایوسه دی دجنوبي افغانستان خاصتاً هغو اقوامو او قبایلو چې دمکلفیت خدمت یې نه کاوه او داکار امتیازنه ، بلکه مجازات وو ددوی وګړي دشمال سره علایق او شناخت نه لري دوی ډیر خوشحاله وی چې دپاکستان په لورو لاړ شي ، خوشمال ته شوق او د تلو ا شتها نه لری . همدا اوس دجنوب افغانانو سرمایه په جنوبي ګاونډي هیواد کې او دشمال افغانانو سرمایه په شمالي ګاونډیو هیوادو کې پرته ده دشمال او جنوب اقتصادي روابطو قطع شوي دي .

دهندوکش دغره امتداد دشرق نه غربي لور ته لوړ ارتفاع ، واوري او ساړه ، دلارو او معبرونو محدود یت ستر مشکلات ګڼل کیږي .

دجنوبي ګاونډي اسلامي قیودات ، دجنوبي افغانستان دوګړو با انظباطه ژوند ، دملایانو نفوذ ، په کابل کې دوامداره جګړه ، داسلام په نامه ترور او وحشت خو برعکس په شمالي افغانستان کې دملایانو نفوذ نشته ، ازادي ډیره ده ، له هر لحاظ شرایط ښه دي ، دشمالي ګاونډیانو آزاد ژوند هم بې تاثیره نه دی .

همدا اوس ډیرو افغانانو زیاته دارایی مصرف کړې او جایدادونه یې په

شمالي گاونډيو هيوادونو کې اخستي دي . همدغه اسباب وو ، چې زه دقندوز دقوماندانانو دکورنۍ جګړو مخالف وم ، او ډير تلاش مې وکړ چې هغوی په خپل منځ کې د نورو دلاس اله نشي چې ددوی په کمزورۍ کې دهيواد ارضی تماميت ته خطر دی .

دهمدې مسايلو په نظر کې نيولو سره بايد ژرترژره ملي طاقت جوړ شي . اوداد هر هيواد پال افغان ملي وظيفه ده ، چې خپل تلاش وکړي. بيا به ناوخته وي چې ارمان يې ګټه نه لري .

په پورتني بحث کې مو ثابته کړه چې دپاکستان له خوا خطر نشته او دا موه ثابته کړه چې راتلونکی افغانستان له هر لحاظه پاکستان ته ضرورت لري او په عين ترتيب پاکستان افغانستان ته ضرورت لري . او داهم يوه معلومه خبره ده چې پاکستان او افغانستان بايد دوستان اوسيږي څو خپل ضروريات او اړتياوې يو پربل پوره کړي .

او س خبره او سوال دادی چې دوست نيرومند ښه دی که ناتوانه . ددې سوال جواب بايد افغانان او پاکستانيان سره ورکړی . يوه بله مهمه خبره چې ډيره دقيقه توجه ورته په کار ده ، هغه داده چې پاکستان او پاکستاني، افغانستان او افغانستاني سره فرق لري ، که پاکستاني او افغانستاني سره مخالف او دښمنان کيږي پروا نشته خو افغانستان او پاکستان بايد دوستان وي .

# ډېر ستر تاریخي خیانتونه

دسردار محمد داؤد خان له جمهوریت نه داستاد رباني دخلافت پورې ډېر ستر تاریخي خیانتونه شوي دي چې یو یې داخلي بولم او بل ته یې نړیوال وایم .

زه دهغو عزیزو افغانانو له نظره چې څه ناڅه یې ژوند تامین دی ، په مال او ناموس یې مصون دی قضاوت نه کوم ، بلکې دهغې اکثریې بدبخته جامعې او دهغوی کورنیو احساس سټکاره کوم چې همدا اوس دبلاکونو او کورونو په زیرزمیني ګانو کې دمجبوریت نه پراته دي ، دفرار توان نه لري ضرورت په لوښو او کاسو کې رفع کوي خیټې تشې ، جیبونه خالي ، نغري ساړه ، مال چور ، سرونه کډو او دناموس دحفاظت جذبه او توان نه لري . هره لحظه او هر ګړۍ دځناورو او وحشیانو دحمیل او تجاوز انتظار باسي . هیلې او آرزو ګانې یې مړې

شوي دي او تر اوسه دهيواد په آسمان کې رڼايي نه ويني .

اوس به هم جناب استاد خليفه رباني دخو بوجيو په بدله او يا داجيرانو په زور يو تعداد ژوندي ( مړه ) دښار بتان دجمعې دلمانځه دادا کولو لپاره په جومات کې راټولوي امامت به ورته کوي آيتونه او احاديث به ورته وايي خو مقدس ايات او مبارك احاديث ددوی له خولو نه هغه پخوانی جذبه او تاثير نه لري . ددوی خولې اوس بې مالکې شوې دي .

دوی په کومو اخلاقو په بدخشان باندې دتاجکستان هوايي بمباران غندي؟ څه ليوه څه پړانگ ؟ له ملانصرالدين نه چاپوس وکړ چې قيامت کله دی ؟ هغه ډير سوچ وکړ او بيايې وويل: چې زما ښځه مړه شی نو کوچنی قيامت او که زه مړ شوم لوی قيامت دی .

دغه افغانان وايي چې پخوا زما سر ، مال او ناموس خوندي وو ، ماکور درلود ، ماکسب او روزگار درلود ، ماښار او پايتخت درلود ، زما مملکت و ، سرحدات يې وو ، اوس نه سر لرم نه مال او نه ناموس . نه کور ، نه پايتخت او نه هيواد ، اميدونه او ارزو گانې مړې دي ، نه نن شته او نه سبا ، ملايان چې هر څه وايي هغه دی وايي خو زما وگړو او زما هيواد ته خيانت وشو. اودراتلونکې لپاره جذبه نشته .

بلې ستړې او ډيرې خطرناکې مسالې ته تر اوسه دهيچا فکر او توجه نشته او هغه داچې :

واقعات هر کله موجود او امکان پذير وي ، خو دهغو په خپل وخت محسبوی لپاره ملي احساسات ژوندي ساتل کيږي څکه چې هره قرباني ىگـ. لري ، په تير شوی جهاد کې داسې افغاني کورنۍ نشته چې هم صدمه او ضربه ليدلې نه وي چې په هر چا به هر افت راغی په هم ـه يې افتخار کاوه . داسلام په تاريخ کې داسې مسلمانان چې موژ دشهـ زوی دوينو رنگ ته دجنت له حورو سره دراده دنکريزو رنگ

روایی او یا پلار ته دشهید زوی دشهادت مبارکباد ورکوي له افغانانو ماسوا په عربو او عجمو کې نشته .

دروغجن دخدای دښمن وي زه چې کله کله له خپل ځان څخه داسوال کوم چې که دشمال نه اسلام کریموف ، دجنوب نه محترمه بینظر بهټو، او دغرب نه خامنه یي په افغانستان هجوم راوړي زما دریغ او موقف به څه وي ؟

بیا به نعره تکبیر وایم دچا لپاره ؟ بیا به په وینو سور یم دچا په خاطر ؟ بیا به دبدبخته اولس بچیان په جوش راولم دځه لپاره ؟ بیا به خیرات ته کینم دچا دبانکونو په خاطر ؟ بیا ؟ بیا ؟

لنډ مطلب مې دادی چې دراتلونکې لپاره دقربانۍ انګیزه نشته او داملت نور ددې خلکو په خوله پیاز نه خوري . هیواد په ملي قیام او ملي قیادت ساتل کیږي . نه په محدود و اجیرانو ، وطن له لوی خطر سره مخامخ دی . رښایي نه ښکاري .

تبصره – دنعره تکبیر مطلب دادی چې موږ پنځلس کاله دخدای لپاره تکبیر ووایه او دالله پاك درضا لپاره مو جهاد وکړ . خو رهبرانو مقدس هدف نه هر څه کثیف استقامت ته وګرځول . .

بله ډیره مهمه او حیاتي موضوع دافغانستان اوسنی وضع الجیشی اهمیت دی .

دشوروي اتحاد دامپراطورۍ له سقوط سره سم دشرقي اروپایي ممالکو او نوو زیزیدلو اسیایي جمهوریتونو دهر راز اړیکو تینګار دشرق دور او د چین له ممالکو سره داتصال کړۍ افغانستان و او دی .

که په افغانستان کې صلح او امنیت موجود وای اوس به افغانستان ، بنه درلودله . زموږ محترم ملایان بې شکه چې ددین رڼا دی خو ددنیا تیاره دی او دوی خواران په دې مسایلو نه پوهیږی . او دهري

ورځې په تیریدو سره طلایي چانسونه له لاسه ورکوو .
شوروی اتحاد دامریکې دپاره او امریکه دشورروی لپاره پهره داران وو ، دنړۍ موازنه تامین وه .
دشورروی اتحاد دامپراطورۍ له سقوط سره دنړۍ موازنه له منځه ولاړه ، اوس زموږ دخاکي کرې دبحر محکې او هوا اعلی قوماندان ستر کاوبای کلنټن دی .
که روسان زموږ دښمنان دي خو امریکاییانو څه دوستی ونه ښوده . که روسان داسلام کم عقله دښمنان دي خو امریکاییان ډیر هوښیار خطرناکه دښمنان دي . دوی دمسلمانانو په وینو ژوند کوي او دوی داسلامي نړۍ بدن کې دسرطان دانه جوړوي په همدې خاطر دشورروي اتحاد دامپراطورۍ دسقوط سره نړیوال خیانت وشو .

ومن الله التوفیق

# راتلونکی نظام او قیادت

کله خو داسې وخت راشي چې ډیر پوه او منور افغانان دتعجب وړ صحبتونه او تقریر کوي او داپرځان ثابتوي چې دوی فکر دحالاتو نه لرې واقع دی او یا خونه غواړي چې حقایقو سره مخامخ شي .
داتلسم بلاك ترشا دنظر بندی په دوهمه دوره کې مې چمن اوګلان جوړل چې کارمل او اناهیتا راغلل او دنجیب په انتظار وو ، چې له بلاك نه راشي . کارمل له واره صحبت شروع کړ او لګه سادو یو ځل بیایې دپرولتیار خبرې شروع کړې . ماورته ووېل : چې کارمل صاحب که نه په ربښتیا دکارمل اوسې نو داګز او دامیدان . راځه زما بیل واخله او دغه چمن جوړکړه . هسې دکارمل په نامه دې لوې جوړې کړې دي ، په خالي او غیر عملی خبرو خلك خوشحالوې . تاکمونستي کتابونه لوستلي دي خو زما مصلحت ومنه او افغاني کتابونه هم وګوره او که نه

په مشکلاتو به اخته شي دافغاني کتابونو نه مې مطلب دافغانانو قبايلي ساختمان ، عنعنات ، او رواجونه نه دي چې افغاني جامعې ته فرق او تميز ورکوي ، بيا مې ورته ګونډې مارګير ( پاړوګر ) قصه وکړه:

ګاونډي پاړوګر مارګير دافغانستان وچو دښتو ته راغلی و چې افغاني ماران ونيسي . له خپل ځان سره يې اووه خطونه ( دايرې ) راتاوکړل خپله شپيلۍ يا تو له يې راواخيسته دشپيلۍ او ډولك په وهلو يې شروع وکړه . شپيلۍ او ډولك يې وهل وهل وهل چې ناڅاپه کېچه مار چې په غاړه يې طوقونه درلودل ، پاړوګر لورته را روان وو . پاړو ګر دشپيلۍ او دډولك وهلو ته شدت ورکړ او خاطر جمع و چې مار به هرو مرو ددې اووه دايرو تر منځه سر زدې او تسليميزي به ، خو مار په سرعت له دايرونه راتير شو او پاړوګريې په کوناتې وواهه ، پاړوګر په چيغو شروع وکړه ، تورو بيخې تور شو . دکلي خلك راپيدا شول او افغاني پاړوګر راغی او هغه يې دم کړ . بيايې ورته وويل چې ته دخپل داويو اوجبو په مارانو اموخته وې دافغانستان کېچه ماران ستا په خطونو او دايرو نه بنديزي . خپل شنه ماران دې ښه دي او دافغانستان دغره کيو کېچه مارانو نه ځان ساته .

اوس اکثريت افغانان په دغه يو نظري تقرير عاشق دی ، چې لويه جرګه دې جوړه شي وسيع البنياده دې وي او دخلکو په خوښه حکومت دې منځ ته راشي . خو کله چې ددموکراسۍ نوم پکې يادکړې پر ماحولې راشي او تبه مې ونيسي چې خدايه داسړی له کومه راپيدا شو دکوم ځای دی او څه خوبونهويني . دوی په دې خبر نه دي چې په کابل کې ډير کسان دکورونو او بلاکونو په زيرزمينۍ کې لاپټ دی او قضای حاجت په لوښو کې کوي . بې ناموسانو له حملې په انتظار لړزيږي او ريږيږي ، په لارو کې سر مال او ناموس نه لاس وينځلی اوبې

له انساني مدافعوي تلاش نه روان وي .

په سلو کې سل په یوه مرمۍ سړی نه وژني ، پنځه بالس په سلو کې سړی په راکټ وژني ، ځوزړه یخ کړي . دداسې جامعې لپاره ددموکراسۍ نوم دواړو خواوو ته شرم دی او خجالت دی . دموکراتیک نظام او دموکراتیک تطبیق دجامعې مدني حالت پورې مربوط وي

دښو انسانانوپیغمبر وي اوبد انسانان حتی په ځناورو کې هم ساري مثال نه لري او نشته . لیوه ، پړانګ او زمری چې خپل ښکارو خوړی او موړ شي بیا دښکار په منځ کې ګرځي او غرض نه کوی ... انسان چې په هر لاره ولاړ بیا دریزي نه او قناعت نه کوي ، او ... حالت ته ورسیزي چې دجنایاتو تکرار دده دروح دارامۍ سبب ګرځي

که په افغانستان کې دموکراتیك نظام فرضي قبول کړو ، نو بیا به مدني دستګاه له وحشت سره په ټکر کې وي .

دښه اکثریت ترمنځ دانفرادي او اقلیت ناپاکه او نامطلوبه عناصرو په دموکراسۍ نظام کې اداره اسانه وي خو داچې ټوله جامعه دشلو کالو په موده کې هر راز پابندي او قیودات له لاسه ورکړي وي ، دهغې جامعې اداره په دموکراسۍ نشي کیدلای هیواد به دهمیشه لپاره په مشکلاتو اخته وي، یو پرابلم اومشکل به خلاص نه وي چې بل به پیدا وي. په هرکلي کې به دحکومت ضد فتواوې جاري وي . دجهاد په کلونو کې دزیری دسنت مقام په دیني علمي مقام هم بدل شو .

دلزو راکټونو خاوند ملا و چې راکټونه یې ډیر شول نو مولوی ځني جوړشو . ددیني مسالو جواب به یې په راکټونو ورکاوه ، نه کتاب .
په دکتاتوري نظام کې به دوه وحشته په ټکر شي که جامعه اودستګاه دواړه په ټکر شي بیا دوګړو راحت او ارام له منځه ځي . عموماً ددکتاتوری نظام په راس کې دهیواد ډیر عالي اشخاص اوسیزي چې

مـاسـفانه دداسي يو نظام لپاره په اوسني حالت کې قحط الرجال دی .
که زموږ دطولاني جګړو په نتيجه کې بو قوت منځ ته راغلی وي ، په هغه صورت کې به دهيواد دوګړو خوشبختي وه خو له بده مرغه چې دوخت په تيريدلو سره نور هم پارچه او پارچه شوو.
کله کله په دکتاتوري دستګاه کې دننه دجناياتو هسته ، لکه کې جي بي يا دپخواني ايران ساواك جوړه شي چې دګناه کارنه بيګناه ډير په تکليف وي .
لوستونکي به زما په دې ليکنه له تعجب سره سره پر ماديو وحشي ګمان وکړي ، زه وحشي نه يم مايوويشت کاله تعليم کړی دی ، زما ټول ژوند دافغاني جامعې په منځ کې تير شوی دی دهيواد په سياسي جرياناتو کې داخل او عيني شاهد وم . زه په خپله پوهيږم چې په داسې وخت او زمان کې دداسې شيانو ليکل په خپل ذات کې دليکو نکی انساني او مدني ژوند ته صدمه او ضربه ورکوي خو ناګذير حقايق وايم او له خپل نظر سره هغه ليکم .
زموږسقاوي انقلاب او اوسنی دڅو کلونو طولاني انقلاب ډير فرق لري.
هغه انقلاب فنر اوسپرنګ و ، چې پهمځکه ولګيد او پورته اوچت شو دسقوط نه صعود ته ولاړو دی انقلاب دصعود نه دسقوط په کندو کې واچولو او په بنيادکې فنري اوسپرنګي خاصيت نه لري . تر هغې چې ځان بوررو لاغرقيږو .
موږ بايد وګورو چې دې انقلاب په عمومي توګه په ټولو ساحو کې دهيواد دترقۍ دکاروان نه دزانې په لحاظ څومره وروسته ايچولی يو ،او په فعلي شرايطو کې زموږ داولس اصلي او بنيادي ضرورت يا ضرورتونه څه دي ؟
دابايد ووايم چې زموږ دشاته لويدلو محاسبه داخلي ده نه خارجي ،

دخارجي محاسبي سيالان نه اوس يو نه پخوا وو .

ددې موضوع محاسبه ډيره ساده ده ، هغه وخت چې اعليحضرت محمد ظاهر شاه سياسي قدرت ترلاسه کړ موږ دصفر شاه وخواته په مثبت حرکت شروع وکړه ، دمحمد داود خان دکودتا په شپه زموږ صعودي گراف په ځاى ودريد او په سقوط يې شروع وکړه دوام لري او اوس هم دخطرناکو کندونه تيريږي . په نورمال حالت موږ ځلويښت جمع شل مساوي شپيته کاله پرشا ولاړو چې ددې دتلافۍ لپاره درې شيان موثر دى : دتکنالوژۍ تاثير ، دتکنالوژۍ دپيشرفت سرعت او زموږ تقاضا دژوند خواهۍ نخواهۍ ضروريات اودوگړو ترمنځه نړيواله رابطه او دتکنالوژۍ انساني ضروريات دشپيتو کالو زمان په ديرشوکالو بدلوي او بيا چې دتکنالوژۍ سرعت نه وگورو موږ بيرته پرشاه غورځوي . داځکه چې دسرعت فرق دځه او داواز دى . دسقاوي نه راپه ديخوا له ټول احتياط سره سره له ټولو نواقصو او اهمال سره بيا هم موږ کې دترقۍ او دپيشرفت آرزو وه ، اوس نه پوهيږو چې موږ به بل شاگرځ وکړو او که نه په پخواني شاگرځ به روان يو .

ددې سوال جواب په اوسنيو شرايطو کې زموږ دوگړي او ولس اصلي ضرورت څه دى او څه غواړي دپورتنيو تشريحاتو په نظرکې نيولو سره زموږ وگړي وايي : چې از خير تو اميد نيست ولى شر مرسان ) زموږ دوگړويوازينى ارمان په وطن کې صلح او امنيت تامين دى چې سر ، مال او ناموس يې خوندي او په أمن اوسي . خوشبينه بچيان دمرکزى نظام استقرار او مجنون صحت وطندوستان ارضى تماميت هم غواړي .

هغه زمانه اوس ولاړه چې بو هيواد به په يوشي کي پرمخ اويل کې تر شا اوسي . اوس زراعت ، اقتصاد ، صنعت ، تجارت ، معارف ، هنر او نور او نور ټول مستقيما په تکنالوژى پورې اړه لري چې دافغانانو

دپاره دولې له ولې نه دمېنو غوښتل دي . دپورتنيو ملحوظاتو په نظر کې نيولو سره زه دافغانستان لپاره اسلامي ، شرعي نظام پر ځای او معقول بولم . مخکې له دې نه چې خپل اصلي مطلب ته دوام ورکړم بايد ووايم چې په دې اخرو کلونو کې داسلامي نظام تر څنګه يو بل حرکت ته چې تر اوسه لاعملي او تجربه شوې بڼه نه لري او زيات نه زيات نړيواله سياسي بڼه يې غوره کړېده جبهه ګيری سره مخ په مخ دی يو داسې اسلامي نظام دی چې څوك ورته بنيادګرايي او څوك ورته اخوانی وايی . او که داسې ووايم چې اسلامي نظام په دوه قسمه جلا کيږي چې يو شرعي ، علمي اسلامي نظام او بل حزبي سياسي اسلامي نظام نور ډير به نه وم غلط شوی . حزبي سياسي اسلامي نظام چې تراوسه دمبارزې په حال کې دی او عملي او تجربه شوی نظام نه دی د هغې دتجربې لپاره زموږ هيواد مساعد نه دی موږ له نړۍسره ددښمنۍ توان نه لرو .

لکه چې وايی ( شوله دی خوږه او پرده دې کوه ) دابه زموږ وظيفه وي چې په نړيواله سطحه دغه دوه نومونه سره جلا کړو او که چيرې زموږ دهيواد داسلامي نظام نوم دنړيوال استعماری طاقت په اذهانو کې په هغه معنی چې هغوی يې تصور کوي ولويږي بيانو ددوه دښمنانو سره مخامخ کيږو چې يو به داخلي او بل به خارجي وي . اوناخواسته به دسترو طاقتونو په دښمنۍکې ولويږو . د شرعي اسلامي نظام په لرلو سره به موږ يوازې داخلي دښمنان ولرو ، چې له هغوی سره مبارزه او مقابله اسانه ده زموږ اوسنی بدبختي په همدې مقصد دبهر نه پلان شوې ده .

زموږ سابقه ټولنه کې دزيرې معنی ښه سريتوب و . دزيرې والا په قول او خبره اعتماد او اعتبار و . بې زيرې ګناه کارته به هر چابده وينا

کوله څوزیږي والا ګناه کارته ډیر بد او نفرین هم ویل کیده او داډیره عامه خبره وه چې فلانی دخپلې زیږې نه نه شرمیږي ، داکوي یا هغه کوي ، اوس هغه حالت ولاړ اوس به ډیر کسان ډیرو نه سو استفادې وکړي او کوی یې ، پخوا دزیږې مقصد او هدف دسنتو په ځای کول وو او داسلامي علمیت سمبول و . اوس زیره پرستیژ او علمیت یې توپ او راکټ دی . زیاتو کسانو زیره دګناهونو سپر او پناه ګاه ګرځولې ده چې دداسې کسانو تعقیب او نیول یوازې او یوازې په اسلامي شرعي علمي نظام کیدلای شي اوبس . او که دابحث داسې خلاصه کړم چې په راتلونکی کې به موږ له دوه قسمه جنایت کاران سره مخ په مخ یو یو یې معلوم او برالا دی چې دهغوی تعقیب او ګرفتاري په هر نظام کې اسانه ده او بل قسم به مستور ، متظاهر بانفوذه یا قدرته نمایشي صوفیان او بې علمه ملایان نما وی چې دتعقیب او ګرفتاری په صورت کې به ټول اسلامي علمي صنف او طبقه دداسې کسانو په حمایت ولاړ وي . دولت یا هر نوع حکومت دداسې طبقې دضدیت او مخالفت توان په هیڅ صورت نه لري . دداسې کسانو لپاره داسې قاضی ته ضرورت دی چې زیره یې له مدعي نه لویه او پنډه او عالم وی چې په جرات سره حکم صادر کړي او مدعي زنجیر بسته زندان ته ولیږي . دکلو او قریه جاتو فتواګاني به ختمې شي او دفتوا اصلي ځای به دولت شي تر اوسه پورې په ټوله نړۍ کې دجنایت کارانو لپاره دشریعت دفولادي پنجو نه بله کلکه پنجه نشته او دمظلومو لپاره له شریعت نه ارامه او اسوده غیر بل نشته . هغه آزاد حکم چې شرعی محکمه ورکولای شي ، مدني محاکمات دداسې محاکماتو دحکم دصدور توان نه لري .

یوه ډیر مهمه موضوع چې راتلونکی اسلامي نظام باید ورته متوجه اوسي هغه له قتل ، ترور ، او اختناق تهدید سره دټوپك په زور

دتکفیر فرمانونه دی . دتیر جهاد په کلونو کې هیڅا هیڅوك مسلمان نه کړه مگر هر چا دخپل زور په استناد په مجاهدو مسلمانانو، په قوماندانانو ، په تنظیمونو په پخواني دولتي اسلامي نظامونو دکفر احکام ورکړل او بېخپله به‌په پنج سوره خبر نه وو . اسلام ډیر مقدس او درونـد دین دی چې لا وبالی اوبې ادبه اعمال په شدت سره ردوی . ددغسې خودسریو دجلوگیری لپاره مرکزي جمعیت العلما یا دفتوا مرکز چې اهل مسلك پرې ښه پوهیږي تشکیل او تاسیس ضروری دی . هغه علمای کرام چې له وگړو سره سر او کار لري او دتبلیغ مسوولیت ورپه غاړه وي باید چې دخپلو مسلکي معلوماتو تر څنگ په عمومي توگه ډیر لږ طبي معلومات او څه ناڅه دساینس شوق هم پیدا کړی اویا سمینارونه او کنفرانسونه جوړشي او موظف کسان ورسړي . مثلاً ملاوایي چې شراب حرام دي ، زنا حرامه ده ، سگرټ منع دي ، چې سوال وکړی ولې ؟ په قدیم کې جواب سوتی و اوس دمرمی ضربه ده . ملا باید ووایي چې دین دمسلمانانو دخیر او بهبود لپاره دی ، دین جزا نه ده لکه څرنگه چې موږ خپل دېتې یو گل یا بوټی ته خوشحالیږو ، الله پاك زموږ په خوشحالتیا خوشحالیږي . څو دممانعت سبب دادی چې ویني خرابیږی قلب ته تاوان رسوي . سرطان پیدا کیږي . او جنسي امراض په بدن کې راپیدا شي . که چا داقناعت ورکړ ډیر کسان به په خپل عقل او منطق سره مسلمانان شي او که نه دټوپك زور چې تصدیق په قلب نه وي ، څه گټه نه لري .

بله ډیره مهمه خبره دښځو ستر دی په دې هکله مسلکي کسان په خپله ډیر ښه پوهیږی ، خو زه ایمان لرم چې داسلام هیڅ کار او عمل له گټې خالي نه وی . خو یو شی ته باید حتماً اشاره وکړم چې دطبیعت تقاضا مخ نیول گران او ناممکن کار دی ، زه دمخالف جنس سره اسانتیا ته ترجیح ورکوم تر څو دجنسي انحراف مخنیوی وشي . مطلب مې دای چې دغه مسایل هم باید مدنظر ونیول شي .

# راتلونکې اردو او دهغې تشکيل

وايي « بچه درسفر نامش مضفر» « توت خام څولی غټه » که څه هم دخودساخته بادشاهانو تعداد ډير دی او هر بادشاه ځانته اردو ، قلمرو، او جنرالان لري خو تر اوسه دافغانستان لپاره بادشاه نشته ، جنرالان نشته نو زما ليکنه دوخت نه مخکې ښکاري .

هغه څه چې تر اوسه وشوه اويا کيږي نه يې دافغانستان دپاره بادشاه کوي نه جنرال . ددوستانو په جامو کې د هيواد داو هيوادوالو دښمنانو داسي وريځې او گردونه جوړ کړی دي ، چې لارڼايي نه ښکاري . خو ديو خوشبين او اميدوار او په جرياناتو کې داخل جنرال په صفت په دې ليکنه لاس پوری کوم .

په دې موضوع به زه تر هغه ځايه چې اجازه لرم څه وليکم او داهل

مسلك به دخپل فهم او دانش په مرسته په خپل وخت کې له اساساتو نه په استفاده تفرعاتو کې داخل شي . اوس يې نه ضرورت شته اونه نظامي ارزښتونه دا اجازه ورکوي .

داچې ځينو کسانو دفرقو او قول اردو ګانو تشکيلات ورکړی او قوماندانانو هم دکورونو تر مخی قرارګاوې جوړې کړې دي او د سلو پر ځای دزرو کسانو مصارف اخلي ، په دې کې له ملي ملحوظاتو نه شخصي ملحوظات ډير دي اوله نظامي ملحوظاتو نه خودغرضه سياسي لاس وهنې ډيرې دي او خودغرضه سياست ته ترجيح ورکړشوی ده .

څوک لګيا دي خپله چاره سازي کوي ، دافغانستان په قصه کې تر اوسه څوك نه دي . هيواد بينی دتوپ او راکټونو په تعداد معکوسه تناسب لري .

داردو تشکيل په عمومي توګه په نړيوالو منل شويو اساستو جوړيږي. دهيواد اقتصاد ، طبيعي منابع ، داراضی شکل ، داراضی وسعت ، نفوس ، له ګاونډيو سره سياسي اړيکې ، له ګاونډيو هيوادونو دقواوو اندازه او سرحدي نژدېوالی ، احتمالي راتلونکي تغييرات او خطرات ، داخلي او کورنی ملي امنيت او نور ډير مسايل په نظر کې نيول کيږي . او دستر طولاني او دهر چالاس وهونکی جنګ نه وروسته هر څه بدليږي.

دوامداره او طولاني جګړو دراتلونکی نظامي اردو او دهغې دتشکيلاتو تسليح ، تعليم او تربيې په هکله تعليم راکړ ، تجربې موورکړې ، غلطيګانې او خپلې پخوانی اشتباهګانې مو وليدلې .

هره اردو دهيواد په داخل کې دقانون ساتندويه وی او دبهر نه دارضی تماميت او ملي منافعو ساتندويه اوسيږي . داردو مسووليتونه او وظايف بايد واضح او معلوم وي ، اردو بايد په هيڅ وخت کې له

مجهولاتو سره مخامخ نشي . سياست بازۍ نه لري وي ، داخبر غلطه ده چې داردو اعلی قوماندان دی دسياست مرکزوي اما اردو دې سياست بازي نه کوي . داردو قومانده بايد دسياسي احزابو دمشرانو په لاس کې نه وي . اردو بايد دجنرالانو دکميټو له خوا نه اداره شي . اعلی قوماندان بايد دملي وحدت دسمبول ماهيت ولري او دسياست نه لري وي اردو د قواوو قشلې او گارنيزيونونه بايد دعملي احتطی وظايفو ته دتقرب په خاطر دکال په هرموسم کې موانع و لري . او دوظيفې په صورت کې اقتصادي او زماني مسايل هم په نظر کې ونيول شي . که داسې قبول کړو چې زموږ دپخوانۍ اردو تشکيل دنړيوالو منل شويو اصلو سره برابررو ، خو دقواو تمرکز او موقعيت هيڅ عملي بڼه نه درلودله . داچې په شمالي افغانستان کې موږ نظامي تشکيل نه درلود ولې ؟ اوداچې ټولې اويا زياتې قواوې په مرکز کې راټولې شوې وې ولې ؟ کومو تخنيکی او مالي او زماني امکاناتو دغه اجازه ورکوله ؟ ددښمن دحالاتو اساسي هدف ترټولو نه مخکې دنظامي تاسيساتو ، مراکزو ، او قوماندانيو له منځه وړل اوسي ، چې په دې صورت کې ددښمن اولين هدف دکابل ښارو ، ځکه چې ټول نظامي طاقت او نظامي تاسيسات کابل ته نژدې شاوخواو کې ځای پرځای وو . دافغانستان دپخوانۍ اردو ډير معقول کار دمکلفيت سيستم او رواج و . او دهغې مفاد په جهاد کې عملاً ثابته شول . دافغانستان هغه مناطق چې دعسکري مکلفيت تابع وو دهغوی تکتيکي دانش ، امر او قومانده ، سوق او اداره دهغو مناطقو په نسبت چې دمکلفيت تابع نه وو ډير ښه وو .

هغو مناطقو چې دمکلفيت دورې تابع نه وو او دوی ورته امتيازات وايي اول داچې يو بام او دوه هوا ولې ؟ او بله داچې امتيازات نه ، په

حقیقت کې مجازات وو . دهغو مناطقو وګړي ړانده ساتل شوي وو . خلکو په هوا او په سمندرو کې لارې جوړې کړې او دوی په مځکه لارې نه پریښودلې ، دداسې وګړو ملي مشران باید په څه نامه یاد شي ؟

دهندوکش ، بابا او فیروز کوه په موجودیت کې که څوك په دې فکر کې وي چې شمال ته دخطر په صورت کې به دکابل مرکزي قواوې مرسته او کمك وکړي لویه ساده ګي بولم ، اراضی ،آب وهوا اقتصاد او وخت اجازه نه ورکوي ، په افغانستان کې دطبعي دیوال موجودیت په شمال کې اقلیتونه او کوچني اقوام ، طبیعي منابع ، ګاونډیان روسی انتقام ، داخلي بې اعتمادي، او همداسې نورشیانو په خاطر دراتلونکې اردو دتشکیل په جوړولو کې اول حق باید شمال ته ورکړ شي . دشمال دقواوو تشکیل باید داسې جوړوي چې دخطراتو په صورت کې په جنوب اتکا وکړي او په خپل ځان متکي اوسي . مکمله اوباصلاحیته قرار ګاه او قوماندانې ولري .

داسې حالت ته باید اجازه ور کړای شي چې یو خارجي کارګر یا تورست دسالنګ شمال ته دتګ او راتګ اجازه ونه لري .

دافغانستان دراتلونکې اردو طاقت باید په درو برخو جلا شي : یوه برخه شمال ، دوهمه برخه جنوب او دریمه برخه احتیاط وي ، هر برخه په خپله منطقه کې شوری ګانې ولري اوپه راس کې دملي دفاع عالی شوری اوسیږي . دمعاشاتو په صورت کې هم باید دمکلفیت اصول مراعت شي . څو چې ټول وګړي دخپل هیواد په اراضی کې بلد وي . او دضرورت په وخت کې داردو دقواوو دتعداد دزیاتوالی امکانات موجود اوسي .

زه شخصاً دافغانستان دراتلونکې اردو دپرسونلو تعداد ، لکه دپخوا په شان دیو لك نفرو شاوخوا په اندازه کافي بولم .

زموز داردو دتسليح او دتجهيز لپاره ظاهراً خلور هيواده ، لکه روس او هندوستان ، چين او پاکستان فکر کيدلای شي چې شخصاً دچين او پاکستان سره داړيکو درلودلو طرفداريم او ترجيح ورکوم .

دافغانستان راتلونکې ارود بايد تر ډيرې مودې پورې دپاکستان داردو په شان اداري سيستم ولري .

لاندې کروکې او نقشه دراتلونکې اردو دتشکيل جوړوونکو لپاره عمومي نظر ورکولای شي .

١- يوه قول اردو له ټانکونو سره په ميمنه اومزار شريف کې دافع هوا په شبرغان کې او دقول اردو قرارگاه په سمنگانو کې دقول اردو داحتياط قواوو سره يو ځای .

٢- يوه قول اردو په قندوز او فيض آباد کې . دقول اردو احتياط قواوې ، دافع هوا او دقول اردو قرارگاه په دوشي کې .

٣- يوه قول اردو په کندهار او هرات کې ، ټانکونه ، دقول اردو احتياطي قواوې دقول اردو قرارگاه سره په کندهار کې .

٤- يوه قول اردو په جلال آباد او گرديزکې داحتياط قواوو او دقول اردو قرار گاه کابل نژدې وي .

٥- يوه داحتياط قول اردو په کابل کې خو دمرکز نه لري ( دغنډونو تر چوکاټ پورې بايد دمستقله وظيفې داجرا توان ولری )

٦- دمخصوصو قواوو ، غرنی ، انجينري ، توپچي ، مخابره ، اکمال او همداسې نورو قواوو پرسونل بايد د قول اردو گانو په تعداد کې شامل اوسي خو چې داردو پرسونل زيات نشي .

چې دلته ماليکلی دي داټول يوازې دعمومي فکر ورکولو دپاره دي او بس .

# قبایل او دقبایلو خصوصیات

که څه هم زما ژوند دوګړو سره تیر شوی دی . په حربي ښوونځي او حربي پوهنتون کې دافغانستان دټولو قبایلو او قومونو ملګري وو . په صاحب منصبی کې زه ټول عمر په قطعه کې وم اوله خلکو سره مې سر او کار درلود . خو دجهاد کلونه زما دپاره نوی ژوند ، نوی تعلیم او نوی تحصیل و . ماهغه څه ولیدل چې انساني عقل ته دمنلو وړنه دي .

له یوې خوا مې په خارجي هیوادو کې تحصیل کړی و او دوظیفې دایجاباتو په خاطر مې ډیر سفرونه کړي وو ، معنی داچې په خارجي هیوادو کې بلدیم . له بلې خوا مې دتیر جهاد په کلونو کې په دوامداره توګه په ( کنړونو - ننګرهار - پکتیا او پکتیکا ) کې جهاد کړی دی او کلي په کلي کې ګرځیدلی یم . که څه هم دهیواد شمالي

ولایاتو ته مې دجهاد نه پخوا سفرونه کړي وو . خو دجهاد له سفرونو سره یې ډیر فرق درلود . دجهاد په کلونو کې مادوه پلې سفرونه دهیواد شمالي ولایاتو ته وکړل ، دډیرو ولایاتو په کلیو کې تیر اورا تیر شوم هغه څه چې ماله کنړونو تر پکتیا پورې ولیدل دنابلدو کسانو لپاره دمنلو وړ نه دي او عقل یې نه مني .

په تیرو کلونو کې کله چې به دپکتیا له ملګرو سره په خبرو شوم دوی به په افتخار سره ویل چې موږ عسکري مکلفیت نه ورکوو ، سړك په خپلو مناطقو کې نه پریږدو ، دحکومت مخالفینو او دښمنانو او زیات نه زیات غیر قانوني زیر زمینی احزابو او متعصبینو به داسې تبلیغات کول چې ګوندې پکتیا وال دحکومت نازدانه او نازولي دي او دا کار ورته امتیاز ښکاریده . خو په حقیقت کې دا امتیاز نه ، بلکه دښمني وه ، دی قبایلو له خپل ځانه سره ستره دښمني کړې ده . دوی دزندانیانو ماهیت درلود ، له بهر سره یې رابطه قطع وه .

دمثال په توګه دځدرانو ، وزیرو ، او تڼی تر منځ یوازې یو غر حتی دغره یوه څوکه ده ، چې په هرلور اعظمی؟پښو دمزله دوه ساعته فاصله ده ، مګر دغه وګړي له دومره نژدیوالي سره سره هیڅ مشترکه وجه نه لري .

حتی دقراني ایاتونو لوستلو کې هم ددوی لهجه فرق کوي . هر قوم ځانته جلا قانون دود او دستور لري . دمنګلو او د ځدرانو تر منځ دغره یوکتنړو دی هر څه بیل او متفاوت دي دزرمت او ځدرانو تر منځ یوازې دپخری کوتل دی او بس په بلې خوا کې دګردیز او ځدرانو تر منځ ستهو کنډو دی ، دغرب لور ته ارګون دی . ارګونیان او زرمتیان له ځدرانو سره هیڅ شی شریك او شباهت نه لري په همدې شکل له منګلو سره سید کرم او ځاځي همسایه دي چې مځکه او اسمان تفاوت او فرق لري ،

ځاځې دا زرکيو ، لوکريو ، خوګياڼيو ، او دتوريو ګونډيان دي ، يو له بل سره مشترك څه نه لري . خوګياڼي او سرخروديانو پلوان شريك دي ، چې هيڅ شباهت نظر نه لري . دره نور او نورګل ګاونډي دي ، صافي او نورستاني ،مشواڼي ، ګجر ، ماموند ، سالار زي يو دبل په منځ کې پراته دي ، ولې دهر چا هر څه بيل دي . کالاشيان او نورستانيان ديوار په ديوار دي خو دهر چارسم اورواج بيل دی . همداسې نور ډير ځايونه . له ډيرې مطالعې وروسته پوه شوم چې اراضي او مخصوصاً لارې دېوې منطقې په زراعت ، معارف ، تجارت ، صنعت ، اقتصاد ، کلتور او فرهنګ څومره مثبت تاثير لري ؟ او په پای کې دمنطقې دوګړو دپيشرفت او ترقۍ سبب ګرځي ، زه پوه شوم چې لارې سترګې دي ، لارې دزړه رګونه دي چې وينه ورکوي ، لارې او لارې او لارې .

دهيواد په شمالي ولاياتو کې چې اراضي همواره او لارې ډيرې دي دپښتنو ، تاجکو ، ازبکو ترمنځه خوراك ، پوشاك او نور ټول رواجونه ګډ شوي دي . په خارج کې حتی داروپاييانو تر منځه په ډيرې اسانۍ سره فرق نه کيږي .

خوراك ، پوښاك او نور ډير رواجونه سره يو شوی دي . په ازبکستان کې ټول ازبك په تاجکستان کې ټول تاجکان په روسيه کې ټول روسان يو شانته دي ، مګر پښتانه چې کلی په کلي بيله دنيا ده . بيل رواج او بيل قانون دی . دمثال په توګه دنورستان سره جوخت دکالاشوکلی دی مړی نه ښخوي ، مړی په تابوت کې کيږدي او هرعمل او کسب او کارچې يې په ژوند کې درلوده ، دهغې نمونه يې په څنګ کې ږدي که نسواري وو دنسوار و دبلی که دهقان و ورکی بيل او همداسې نور ، څرنګ چې موږ دخپلو سپين ږيرو لپاره دکور او کفن سرشته کوو چې

عموماً دلاعلاجه مریضی په وخت کې داکار کیږي ، دهغوی سپین زیري شراب ذخیره کوي ، بهترین جشن او خوشحاتیا دمړي په وخت کې ده . اوربل کړي او ښځې او نر راټول شي ساز کوي ، کډېږي او شراب خوري او ټول دنیشې له لاسه دښوریدونه وي ، بیا مړی له کلي نه یې په یوکیلو متر اندازه وړی او تابوت سره یې زدي وايی چې که دمځکې د دلاندې شو کله که په مړي باندې سختي وې او چیغې ووهي او از یې نه اوریدل کیږي بایدبهر وي چې اواز یې واورو .

هر کلی په فاصله دنیم کیلو مترو داوبو دغاړې یوه کوټه لري. کله چې ښځه میاشتنی عادتي ناروغه شي دخپل دکورنه هغه کوټې ته ولاړه شي او شپه او ورځ هلته اوسي ،دکوټې تر مخې دیو متر په فاصله کې خډ وي . کله چې خوك ورته ډوډی یوسي دخط په سر ډوډی کیږدي . لاس ورته نه ورکوي وايي چې هغه پاکه نه ده . دمریضی په وخت کې له گیاو و نه مخصوص رنگ جوړوي او په ځان یې وهي چې دوجود پوستکی یې پاك پاته شي . کله چې جوړه شي ځان په اوبو پاك کړي بیا کور ته راځي . ښځې دکور کار کوي او په زیات فیشن گرځي معنی داچې دنارینه وو دکار برخه ډیره وي .

ددوه کیلو مترو په اعظمی فاصله کې دنور ستانیو کلی شروع کیږي ژبه فرق لري دین فرق لري رسم ورواج فرق لري . په نورستان کې زیات کار زنانه کوي ، شکل او قوارې ، لکه ویښتان او سترگې یې خارجیانو ته ورته دي . ښځې نظر په طاقت او توان خپل دشاکجاوې ډیکوریشن کوي دوریښمو اومر یو ځوندې اچوي او په همغه ښکلې کجاوه کې دغره نه لرگي راوړي ددهقانی زیاتره کار په ښځو دی . دنورستان مشهور پنیر چې هره چکی یې څو کیلو گرامه راځي بوی واخلي او بیا چینجی وکړي او گنده شي بیا خپله بیرته وچ شي او چنیجان یې مړه

شي . هغه پنیر په هر قسم هوا کې نه خرابیږي او بوي بیا هم نه کوي .
په ټول افغانستان کې دنورستانیو کورونه ښایسته وي ، عموماً په کور کې جوړو شویو چوکیو باندې کیني ، قومي اداره دمشرانو په لاس کې وي هر هغه څه چې مشر روایی دهغه اطاعت کوي ، معنی داچې دمشر فرمان براداره دی ډیر په خبره او ژبه ولاړ خلك دي ملګرتیا کې صادق او ډیرې ثقیلی ټوکې کوي . عموماً خامه غوښه خوري . ددوی دیوال په دیوال صافی پراته دي ژبه او رسم او رواج یې فرق لري شکل او څیرې یې فرق لري . په صافو کې ښځې کار نه کوي قومي شوری لري دمشر اطاعت کوي خو مشران دهمیشه لپاره په خبره ولاړ نه وي کوشش کوي او ډیر مصارف کوي چې یو تربله له پښو واچوی . دواقعاتو په صورت کې دپکتیا دپښتنو په شان قومي روغې جوړې نه لري دزور نه کار اخلي او دښمني ګانې دوامداره وي . دره نوري ، پشه یي او دځنګ کلي نور ګل یا سلام پور پښتانه دي ، سرخرود په دری ژبه خبرې کوي، مګر خوګیاڼي په ټکي دری نه پوهیږي ، سرخرودي ډیر ارامه ژوندي او ښه خلك دی .

دخوګیاڼو او تګاو یوخوی یو شانته دی ، څکه چې انار لري او آب او هوا په کې یوشان ده . چې خبره لنډه کړم خدای دې ددوی ددښمنۍ نه ساته . دود او دستور نشته هرڅه ستا په زور او قوت پورې اړه لري . ددښمنۍ شروع اسانه خو خاتمه بیا ډیره ګرانه ده . دنادرشاه او سقاو هلوکي خاورې شول ، خو په خوګیاڼیو کې لاتر اوسه دنادري او سقاوي په نامه دښمني پاتې ده . په کنړ کې یو رواج مشترك دی چې هرکور کې تیره چاړه اوسږي او هر کور کوشش کوی چې ګډی او پسه ولري څو میلمه خبریږی دګډ په غاړه چاقو کش وي . په پښتنو کې ځاځي ډیر سنګینه خلك دي ، چې هر څومره وخت ورسره تیر کړي سړی نه خسته

کیږي . ډیر باوفا دی دخپلو مشرانو ډیر احترام کوي په خبره ولاړ دي.
منګل هم بنه دي خو هغه رابطه چې مشرانو او خلکو ترمنځه په ځاځیو کې ده ، په منګلو کې نشته . منګل دځاځیو نه ډیر وروسته پاته دي . ملك خنډو چې زما ډیر دوست او عمریې دپنځوسو کلونو نه زيات و، ما په پاړه چنار روغتون کې سنت کړ .
وایی چې په سنت کې دسړي مردي کمیږي . دخوست په جنوب کې ددایرې پنځه کیلو متر قطر کې کوچیان ، ګرباز ، خوستي ، تڼي ، ده وړ ، سیدګي ، سنکی ، لغوړو پیران ، وزیر څه هم منګل او څه ځدران پراته دي چې هیڅ وجه مشترك نه لري او سړی به حیران پاته وي ، لکه چې دیوې دنیا نه بلې دنیا ته ځي .
ټوله پکتیا خصوصاً ځدران حکومتي قضا لری خپل قومي شریعت لري او ځانته خاص رواجونه لري . ځدران په جرګه کې عقل جنګي کوي، ډیر وخت په خبرو تیروي ، مشهور خوراك یې ډنډه کی دی .
غنمې وریجې پخـــې کړي او په ډیر لوی لوښي کې واچوي او په منځ کې غَر حی وي چې سوروا یا غوړي اچوي میلمانه راټول شي په خوراك شروع وکړي خوك چې ماړه شي هغه بیرته شي نور کیني او که وریجې کمې شي نورې پکې اچوي که څه هم زما ډیر دوستان او ملګرې دی خو ددوی په جرګو کې ډیر ستړی کیږم .
دنابلده پښتون لپاره دځدرانو په پښتو پوهیدل ډیر ګران دی .
زما په خیال چې ټوله خبره په لاروهم نه ده مربوطه . که خبره یوازې په لاروي خو په هزاره جات کې هم لاری محدودې دي او دژمي په خاطر دکال څو میاشتې په واورو کې لاره بنده وي ، مګر دوردګو نه شروع تر غزني بیا تر بامیانو ټول هزاره ګان یو شانته جامې اغوندي او یوشانته خبرې کوي او یو شانته رواج هم لري. زما په عقیده په پښتنو قبایلو کې دلارونه علاوه قبیله يي افتخارات او خودخواهي هم موثره ده .

# اخوان المسلمين

اخوان المسلمين یا په بله معنی مسلمان دمسلمان ورور دی . دا قراني نوم دی او دانوم رسول الله (ص) ایښی دی ډیر خوږ او ډیر با معنی دی. خو ټول مشکلات په دې کې دي چې دا نوم خوك پر ځان ږدي او ددې نوم نه په عمل کې څه کار اخلي . دالهی دارشاداتو اونبوی احادیثو دهرې خبرې نه واقعاً چې کتاب جوړېږي . مثلاً ، ولې مسلمان دمسلمان ورور دی . ولې مسلمان دمسلمان پلار نه دی ، زوی نه دی ، کاکا نه دی ، ماما نه دی او هم داسې نور ... دغه کلمه چې مسلمان دمسلمان ورور دی داد عربو دجزیرې دوګړو دهغه وخت ضرورت و ، خیمه په خیمه بت پرستي وه ملکي ، خاني دکلي او دقبیلې مشر توب هم چشمي او دښمنۍ ګانې افراطي وې ، دداسې قوم خیمه په خیمه بتان ماتول . کلیوالی او قبیله یې امتیازات له منځه وړل ، خاني او ملکي ختمول ، دادزوی او پلار په نامه نه کیدل یو خو داچې خوك دې زوی

شي او څوك دي پلار اختلاف راته ، امتياز راته او دټولو نه مهمه چې اصلي هدف او مقصد په لاس نه راته . زوی او پلار په سيستم تبعيض، فرق ، امتيازات لانور هم تشويق کيدل .

په افغاني ټولنه کې دپخوا نه پلار دکورنۍ سر قبول شوی دی او کله چې پلار مړ شي ، دهغه لنګی دمشر زوی په سرتړي . زامن ،پښې او ورونه بازوګان او مټ قبول شوي دي . مټ او بازو دقوت علامه ، مساوات او عدالت ، او صف معنی ورکوی . دجزيرې وګړو دداخلي مشکلاتو نه علاوه بهرني ډير او ستر مشکلات درلودل . په عمومي توګه يې له بهر سره چندان روابط نه درلودل او پردې لاخبر نه و چې بهر څه تير يږي . چار پير امپراطورۍ ګاني وې ، لکه ايران ، مصر ، يونان ، روم او مختل مذاهب په ډير شدت سره فعال وو ، لکه يهوديت، عيسويت ، بت پرستي او آتش پرستي او همداسې نور ، دهرې قبيلې ، دهر قوم خدايان بيل او جلا وو . که څه هم جزيره دامپراطورانو دعمومي تهاجم دخط السير نه ډيره لرې نه وه ، خو هيڅوك هغې خواته ولاړ نه شول . داځکه چې نه يې اقتصادی ارزش درلود نه زراعتي او نه دژوندانه دتيرولو دپاره مساعد ځای و .

داسې يو قوم په يو واحد صف راوستل ، دجاسوسانو مخه نيول ، منافقين له منځه وړل او دالله پاك دين دشمال نه تر جنوب ، دشرق نه تر غربه پورې رسول دايوازې او يوازې ( مسلمان دمسلمان ورور دی ) په نامه کيدلای شي . خو دهمغه وخت وروري وه ، دوستي وه ، ګفتار و ، کردار و ، اعتماد و .

بله ډيره مهمه خبره دغنيمت وه . دغنيمت معنی دانه وه چې ستانه په مراتبو دښه مسلمان په کور حمله وکړه او کورېې چورکړه او بيا پرې غنيمت نوم کنبيزده . دجلال اباد شمال ددره نور سورج په کلي کې زما

قرار گاه وه ، څه نور ملګري قوماندانان راسره ناست وو ، يو قوماندان دسرخرود نه پاکستاني بريګډير امام ته چې په تورخم کې و مخابره کې وويل : ( اما صاحب انشاالله مجاهدين موفق دی موږ دخدای په فضل دځرکارانو له کلي څخه اته ښځې او پنځه ماشومان غنيمت کړل ) ددې خبرې داوريدو سره ماهم و ژړل ، هم وخندل هم تعجب او هم حيران شوم. رښتيا چې دبد او جاهل انسان دشر نه دې خدای سړی ساتي .

دغنيمت قصه په ملي اسلامي محاذ کې هم شوې وه . هغه داچې پيرصاحب سيداحمد ګيلاني خپلې قرار ګاه ته غوښتلو په ارګون کې ښځې ددوی په اصطلاح غنيمت شوې وې ، ملګرو چې دنامه زکر يې ضروری نه بولم ، مخصوصاً ملا باقي ډير اسرار کاوه چې مجاهدينو ته دې په نکاح شي . ماوويل چې اول افغانانو کې کافر نشته ، اکثريت يې مسلمان دي . خو اقتصادي نظريات يې کمونستي دي . بل داچې ددوی نکاح کوم حتمي امر هم نه دی . دريم داچې مقابل لوری به داسې عصبي شي چې زموږ باناموسه ټولنه به دبې شرمی او بې ناموسی لوری نه بوځي او قهراً به بد کارونه وکړي .

په پای کې زما په پيشنهاد دتنظيم مشر چې په خپله هم ډير شريف او متمدن انسان دی نيول شوو ، ښځو ته ټکري ( څادرونه ) جامې او نقدي روپۍ ورکړې او رخصت شوې . چې نتيجه يې ډيره ښه وه .

په هر حال دهغه وخت غنيمت معنی بيله وه . مسلمانانو لوژستيك نه درلود ، اکمالات نه وو ، دهر مجاهد کور نی وږي وه ، يوازې اوس چې کورنيو يوازينی اقتصادي منبع وه ، هغه هم اکثراً دجهاد په خدمت کې و ، دغنيمت معنی دمجاهدينو سره اقتصادي مرسته وه ، چې هغه هم دچور او چپاول په شکل نه ، بلکه دمشر يا دقوماندان له خوا په عادلانه تقسيم سره ، بله مهمه او اصلي معنی يې دکلچر، فرهنګ ، تمدن

انتقال او تبادله وه ، څو وګړي يو تربله څه نا څه په مشترك شيانو راټول شي . نن چې دهسپانيې دتورستي كالنی عايدات په مليونو ډالره كيږي او خلك ځي اسلامي اثار ګوري دادعربو دجزيرې نه تللی نه دی دا زياتره دايران ، سوريه او نورو آثاروو او همدې ممالكو فني كسبه كار وو چې هلته يې بقايا پاته دہ . دګرديز هوايي ميدان ډير عصري او دفولادو دتختو د بافت ، نه جوړ شوی و او ديوځای نه بل ځای ته انتقال كيده . ګرديز موږ ته بيله جنګ تسليم شو . ميدان روغ رمټ و. دمولوي حقاني د اصرار سره سره كله چې دڅو شپو غيابت لمبو ګر نه راغلو ميدان چور شوی و او پاكستان ته رسيدلی و . چې دی ته غنيمت نه وايي . چور چپاول او غنيمت فرق لري . دخپل كور مال نه غنيمت كيږي . بيت المال هميشه محفوظ وي .

كه څه هم ددوهم خليفه نه وروسته قدرت خواهی ، خودغرضي ، قوم پرستي شروع شوې خو هر چا خپله بقا په اسلام او داسلام په پيشرفت كې ليدله په همدې خاطر اسلام دانكشاف په حالت كې و . خو هغه وخت چې مسلمانانو داسلامي خلاف په توبه كيدلو لاس پورې كړ دنړيوال اسلام ستونزې شروع شوې. تر اوسه داسې شواهد نشته چې مسلمانان دهميشه لپاره اول په خپل منځ كې ستړې شوي دي بيا كفار غالب شوي دي . دتاريخ په اوږدو كې افغانانو داسلام په خپرولو كې ډيرې قرباني وركړيدې . او داسلام او مسلمانانو په ګټه يې خدمتونه كړي دي .

سيد جمال الدين افغاني دمنځني ختيز په اهميت پوه و ، او دغربي استعمار دمخنيوي لپاره منځني ختيځ ته ولاړ څو داسلام په نامه او داسلامي ورورۍ په چوكاټ كې مسلمانان سره راټول او داستعمار په مقابل كې يو موثر طاقت جوړ او تشكيل كړي . خو له بده مرغه دغرب

پرستۍ اشتیا او آرزو مسلمان پرستۍ نه ډیره وه ، که یومسلمان هیواد په ځان دغیر اسلامي تهاجم نه خلاص کړ په بله ورځ به دمسلمان ورور هیواد سره لاس په گریوان و . په همدې مناسبت بعضو مسلمانو هیوادو د مسلمانانو دتهاجم او یرغل دمخنیوي لپاره غیر مسلمان ځانته دعوت کړل . اعرابو هیڅکله دازادۍ خوند وانخیسته تر اوسه استعمار و اوس استسمار دی . بعضو ته اسلام یو قومي یا کورنۍ نوم گرځیدلی و اوس نور نو هغه اندازه چې دڅاگانو نه تیل را ووتل په همغه اندازه اسلامي جذبات او احساسات په څاگانوکې ننوتل زموږ پرهیواد دخارجي قواوو تهاجم اصلي علت دعربو تیل دي ( نه خوردم از اشش ، کورشدم از دودش ) موږ ته د عربو دتیلو او اعرابو نه ضرر رسیدلی دی اورسیږي. هغه ځایونه او مناطق چې افغانانو مسلمان کړي وو ، اسلامي احساسات په کې ډیر او لاژوندی دی . دعربو اسلامي وگړونه دناعربو اسلامي وگړو تر منځه دوستانه روابط ډیر دي .

داسلام دخپریدلو اصلي هدف او مقصد جهاگیرداري نه وه ، اقتصادي یا ستراتیژیکي مقاصد نه وو . په نړیواله سطحه دوگړونه پاکه او صفا اسلامي جامعه جوړ ول وو اوس . زه په خپله لاتر اوسه نه پوهیږم چې بنیاد گرایي څه ته وایي افراطیان څوك دي ؟ ترور ، تهدید ، قتل او غارت ، تخریبات او قاچاق څوك کوي ؟ زه که رښتیانی اخوانی وگورم ، لکه مریض چې دوکتورته روان وی زه به اخوانی ته نژدې کیږم. دهغوکسانو نه چې زه دجهاد په تیرو کلونو کې ډاریدم وسله او بادیگاردان مې گرځول هغوی تقعاً اخوانی نه دی داخوانیانو نوم بدوي دیو اخواني نه د مسلمان ډاریدل دواړه خواته شك پیدا کوي . په منځني ختیځ کې اوس هم حقیقي اخواني نظام ته ضرورت دی زموږ فلسطیني ورونه دطلاو په معدن کې پراته دیهودو نوکري کوي ، چې

داواقعاً ښه کارنه دی ، څکه چې اصلي اخواني نشته رښتياني اخوانيان بايد هغه اشخاصو ته چې ترور کوي ، تخريبات کوي بيګناه کسان وژني او عمومي نړيوال نفرت او ضديت توليدوي . نړيوال جبهه ګيری ته مجبوروي ، مسلمانان ويره وي ، بايد هغو ته حتماً بل نوم پيدا کړي يو ځل بيا وايم چې منځني ختيځ ته داخوانيت اشد ضرورت دی ، چې معنی يې وروری وي نه ترور ، داځکه چې دخدای نعمت ديو محدود اقليت په لاس حيف او ميل کيږي او غربيان ترې نه ګټه اخلي .

هر هغه چا چې څوک وژلي اويا هغه څوک چې څوک وژني او شرعي حکم نه وي او بيا داخواني نوم په ځان ږدي هغوی دوه ګناوې کوی يو داچې مرګ اودښکلي ژوند اخستل دالله پاك کار دی ، دوی چې قتل کوي دخدای په کار کې مداخله کوي او بله ګناه داده چې داخوانيت ښه نوم بدوي . حقيقي اخوانی بايد دعالي شخصيت نمونه وګرځي ، څو دخلکو مينه او محبت ورښاندې راشي او هرڅوك وغواړي چې هغه وګوري او دهغه ټول حرکات او اعمال تقليد کړي او هر هغه څوك چې دچا دځيرې نه وړار يږي نزديکت او قرابت ورته خطرناکه ښکاره شي ، هغه حتی ښه مسلمان نه وي . ددې تر منځه غربي قدرتونو دانتلجنس شبکو ډير عميق کار کړيدی او ډير موفق دی او کوشش کوی چې مسلماني پر هم دوی بدنامه کړي دمسلمانانو پر ضد کينه او نفرت توليد کړي تر اوسه ددغه اشخاصو تکليف پوازې مسلمانانو ته رسيدلی دی او لادښمنانو سره يې څه نه دي کړي ، او نه يې دلاسه پوره دي ، رباني زموږ دهيواد داخوانيانو استاد وو او ومو ليدل چې څه يې وکړل او څه کوي . په صراحت او په جرات سره داوايم چې بعضې شيان دي چې هغه انسان دحيوان نه جلا کوی ، که دغه تميز او امتياز په چا کې نه وي چې دځناورو سره يې تميز وشي که څه هم څيره يې دانسان

وي هغه بيا دځناور نه بد تر وي ځکه چې ماغزه دانسان لري او خطرناکه وي . که ځوك په خپلو نواقصاتو پوهيږي بهتره ده ، چې دبيطرفو اشخاصو نه قضاوت وغواړي .

دروسانو او کمونستان سره په جهاد کې تر هغې چې هدف مقدس و که څه هم ټوټه او پارچه وو خو داخوانيت په روحيه موفق شو خوکله چې اسلام دهدف پر ځای دخود غرضۍ او قدرت دپاره وسيله شو اخوانيت له منځه ولاړ کور په کور وروړ په وروړ دشمني شوه .

# امریکاییان څوك دي ؟

په څه نامه یې یاد کړو؟ دوستان دي که دښمنان ؟ پر موږ یې څه وکړل ؟ او ولې ؟ . کله وایم بهتره ده خاموش اوسم ، بیا وایم چې راتلونکی افغانان حق لري چې دهیواد په تیرو واقعاتو باخبر وي یو متل دی وایی چې دمشر لاره دکشر پول دی . دااخلاقی مسوولیت دی چې سړی باید حقایق په ډاګه سره ووایي تر څو عبرت شي او غلطي تکرار نشي ، یوې خواته خاموشي وه ، بلې خواته دهیواد سیاست دهمیشه دپاره دڅو کسانو په جیبونو کې خوندي و چې په نتیجه کې افغان چې په خلاصو او حساسو غوږو چې شرق ته ولاړ شرقي شو او چې غرب ته ولاړ غربي شو منځ والا وهم دعربو په ډولك اتڼ شروع کړ، وګړي وړانده پاته وو ، تعجب او حیرانتیا دې ته ده چې څرنګه او په کوم منطق یو پنجشیری دافکر کوی چې تګاوی دشمن او امریکایي دوست دی . څرنګه یو پغمانی داخیال کوي چې هزاره دشمن او عرب

دوست دی او همداسې نور . داهم يوه غلطه او احساساتي خبره ده که ووايو چې موږ افغانان په خپلو کې ديني او يا افغاني وروڼه يو ، موږ په فورمول او اساسي اصولو دوستان او دښمنان کيږو يا خپل او بيگانه کيدلای شو .

تر هغې چې سود او زيان شريك وي هم وروڼه يو او هم دوستان او کله چې سود او زيان سره جلا شي روابط هم جلا کيږي . پخوامو کلوکې مدعيان او دشمنان وو خو کله چې روسان او کمونستان هيواد ته راغلل دکلو دښمني مو پريښوده او هغوي ته خواهي نخواهي متحد شوو . دا په دې خاطر چې روسان او کمونستان او روسانو مقابل کې زموږ سود او زيان سره گډ او شريك وو . او شريك دښمن ته متحد شوو . همداسې دوروڼو تر منځه شديد اختلاف وی خو دتربور په مقابل کې متحد شي چې دادميني او محبت موضوع نه ، بلکه دسود او شريك زيان خبره ده.

که له يوې خوا دغربيانو ملل متحد بيرق ، حقوق بشر ، حقوق حيوانات ، حقوق پرنده گان ، حقوق شناوران ، حقوق سرسبزې ، عفوه بين المللي او همداسې نور تشکيلات و گورو نو ، داگمان کيږي چې غربيان اومخصوصاً امريکاييان بلا تشبه اسماني فرشتې دي .

زما په عقيده يا دا ټول فريب دی ، دروغ دی او تظاهر دی او يا داچې ټول دغه تشکيلات ددوی دخپلې ټولنې لپاره دي او موږ ددې خاکي کرې غړي نه بولي . اويا خو داچې دجامعې اکثريت ښه خو له بده مرغه يو کثيف سياسي اقليت دی ، چې په نړۍ کې لاس وهي او دجنت نه يې جهنم جوړ کړی دی . دسی ای ای خو نړيوال شهرت معلوم دی چې تفصيل ته ضرورت نشته زه خاص يو شي ته متاثر يم چې ولې زموږ سره په معامله کې صادق نه وو .

پنځلس کاله په تير جهاد کې امريکاييانو زموږ سره کمک/ او مرسته

وکړه ، ددې مرستو هدف او مقصد څه وو ؟ دوی زموږ لپاره کمك دهنده او دمعاملې ملګري وو او که موږ ددوی لپاره ابزار کار او داستعمال وسیله وو . که دمعاملې شریکان وو خو دوی دشوروی دامپراطورۍ دسقوط په نتیجه کې دنړۍ اعلی قوماندانان شول مګر زموږ برخه څه شوه ؟ او که موږ ددوی لپاره اجیران او مزدوران وو نو زموږ مزدوري او اجوره چیرې ده ؟

دیو نیم ملیون شهیدانو ، کونډو او یتیمانو ، په لکهاوومعیوبینو حقوق څه شو ؟ ایا په دوی کې وجدان او وجداني احساس شته ؟ دنړۍ دپیژندنې په هکله انګلیسان دامریکاییانو لپاره څراغ او رڼایي وو ، امریکاییانو د انګلیسانو په همکارۍ نړیواله رابطه پیدا کړه . دابیشکه چې امریکاییان نړیوال یوازینی ستر طاقت دی او هیواد نه ، بلکه براعظم دی . افغانان او امریکاییانو وګړي حق لري چې دپنځلسو کالو تودې او ګرمې دوستانه رابطې دنتیجې نه پوه او باخبر شي .

افغانان باید پوه شي چې څه چې زموږ په هیواد تیر شوه او تیریږي داتصادفات نه دی ، بلکه دپخوانه دامریکا له خوا پلان شوی وو او دی . اول یې دافغانستان نه تلك جوړکړ او دروسانو پښې یې بندې کړې ، چې دنړۍ په اکثره جرایدو کې کار تونونه وښودل شول ، چې دخرس پښې بندې وې .

دبنیادګراییانو لپاره دوه مرحلې درلودلې ، چې یوه یې تشویق حمایت او په جهاد کې استعمال او دهغوی په ذریعه ملي قیام جوړول وو ، په دې متیقن وو چې دروسانو پرضد دافغان مسلمان اولس استعمال داسلام او افغان په نامه کافی دی اود افغانانو دقربانیو په نتیجه کې به دشوروی امپراطوري ړنګه وي خو که داکار وشو ، ددوی خبیثه پلان چې دروسانو نه وروسته به افغان څرنګه تباه اوبر باد کړي ، یوازې

داخوانیانو او بنیادگرایانو په خپل منځی ترتیب شوی اختلاف یې قناعت ونه کړ او هغه کورنۍ او داخلي منطقه یې جګړې یې کافی ونه ګڼلې بیایې دهغه نه علاوه یو پلان دڅېړ او قوم پښتون ، تاجك ، هزاره او ازبك په نامه دېې اتفاقي تخم دپخوا نه وشینده او داسې عیار کړی وو چې دجهاد دختم سره باید په خپله حریق جوړشي .

ددې نه علاوه احتیاطي پلان یې دکمونستان بقایا دوستم او دهغه په راس کې کارمل و . چې دبینان سیوان په مساعي په خپل حال پاتې او بیا تقویه شو .

شخصاً ما پخپله څو څو واره امریکاییانو ته شکایت کاوه چې تاسو اخواني او بنیادګرایي احزابو ته دفیصدی په لحاظ ډیر کمك ورکوی او موږ چې دموکراتان او ملي ګرایان یو موږ ته کمه راکول کیږي . او ملت هم په قاطع اکثریت زموږ طرفداردی . داخبرې ماډیرې زیاتې کړې او داعلیحضرت نوم مې هم راپورته کړ چې په فعلي شرایطو یوازیني سړې باندې چې افغانان راټولیږي هغه اعلیحضرت دی . دوخت په تیریدو سره چې ما په دوی کې ملګري پیدا کړل ماته یې په صراحت وویل چې زموږ اوستاسو اهداف فرق کوي ، که اعلیحضرت او یا نور ملي اشخاص تشویق او منځ ته راشي ، دوی دروسانو سره یو حل ته رسیږي او مسایل به خاتمه پیدا کړي ، چې موږ دانه غواړو ، زموږ ټول هدف دادی چې شورویان باید په همدې تلك کې دمنځه ولاړ شي ، یعنی دوی په خپل غم کې وو نه زموږ .

دروسانو له وتلو سره سم دحزب اسلامي او جمعیت اسلامي اختلافات شدت پیدا کړ . جمعیت اسلامي تقریباً بیطرف و خو دمسعود برخه جمعیت له حزب اسلامي ( حکمتیار ) سره په مسلحانه سنګرو کې ولویدل . دامریکې په سفر کې داخل په صراحت سره دحکمتیار پر ضد

تبلیغات کیدل او هر چابه هر هر څه ویل چې هر چاته سوال پیدا شو ، چې داولې ؟ پرون یې صفت کاوه او دبنیادګرایانو طرفدار وو او نن مخالفت کوی هغه هم یوازې دحکمتیار ؟ دډیرو معلوماتو سره سره داسوال ماته هم پیدا و چې داحمد شاه مسعود سره ددوی دطرفدارۍ عوامل به څه وي ؟ ولې سکه او ناسکه پیدا شول ؟

دجهاد دشروع نه ما کوشش کاوه چې که روسان دښمنان شول نو باید امریکاییانو سره تعلقات دوستانه وي .

داسې وخت راغی چې په لوړه سویه په پاکستان کې سفارتي مقاماتو ته هدایت شوی و چې که امریکاییان افغانستان ته ځي نو دجنرال صافي او قوماندان عبدالحق په اطمینان دې ولاړ شي .

پیترتامسن دمجاهدینو لپاره دامریکې سفیر دوستی او ملګرتیا دې مرحلې ته رسیدلې و ، چې دواشنګټن نه دحرکت په وخت کې دپاکستان سفارتي مقاماتو په ذریعه خبر راکاوه چې ټامسن به په اوله شپه کې ستا میلمه وی او غواړي چې قومي مشران او قوماندانان وګوري ، معنی داچې دده قرارګاه او دملاقاتو نو ځای دافغانانو سره زما کور و .

په یو دعوت کې دده سره دامریکې ډیر ستر هیئت هم راغلی و ، دقومي مشرانو ( پښتنو ، تاجکو ، هزاره وو ، ازبکو او نورستانیو ) نماینده ګانو ګډون کړی و . دامریکاییانو دحملې نه چې یوه برخه بحث تیر شوی و او په هغې کې مخصوصاً قومی مشرانو داعلیحضرت یادونې وکړې یو امریکایي رټ په رټ شروع وکړه وی ویل په افغانستان کې پادشاهي ، جمهوریت ، کمونستان ، اخوانیان او وحابیان داټول پښتانه وو ، نور دپښتنو ریکارد ختم دی . احمد شاه مسعود هغه حبیب الله سقاونه دی چې دغله یه نامه یا ځني اودوطن دبرهادی... یو ځای له منځه ولاړ شي احمد شاه مسعود به په

افغانستان کې نظم او نظام راولی هیواد به آبادکړي او دی به دتاجك سقاو تلافي وکړي . امریکاییان یې تر خنګ ولاړ دي . ددغه امریکایي او بعضې افغانانو تر منځه بحث جدي شو .

وکیل محمد سرور خان ، پهلوان حفیظ ، مامور افغان دجدي جوابونو سره سره وویل چې دوی هر یو دمسعود نه په قوت کې کم نه دی . پروفیسور امین ورته وویل چې زیره زما واك یې دملا . تاته داحق چادرکړ چې دافغانانو په مسایلو کې مداخله وکړي . او علاوه یې کړه چې موږ ته هر مداخله ګر دروسانو حیثیت لري .

ماته دکور به په حیث دډولې غصې سره سره دخاموشۍ نه غیر بله چاره نه وه ، او داځکه چې دوی زما میلمانه وو . پروفیسور امین چې زما عزیز او ډیر نږدی دوست او ملګری دی بیا دغه شان دعوت ته زما کورته نه راته . دژبې او قومي تحریك په اچولو ډیر متاثر و او دامریکاییانو نه شاك وو .

پیټر ټامسن په خندا شو او زما دنظر تپوس یې وکړ. ماوویل چې مسعود افغان دی او زموږ تر منځه دتاجك او د پښتون خبرې پورته کول ، په هر حالت کې زموږ په زخمونو مالګې دوړول دي . هر څوك چې مسعود په بښه نامه یاد کړي موږ خو شحالیږو خو پر موږ کې دبادشاه جوړول دافغانانو کار دی نه دامریکاییانو او هر هغه افغان چې خارجي ټاپه وخوري هغه بیا افغاني جامعې په منلو وړنه وي .

ټامسن تکرار له مانه تپوس وکړ چې دمسعود په زعامت کې ستا نظر څه دی ؟ ماورته وویل چې مسعود افغان دی او مجاهد دی زما څه اعتراض نشته خو دهغه لپاره چې ملی زعیم شي لاوخت شته دی . زه به ډیر خوشحاله یم چې مسعود دپنجشیر بای او تاجك بای نه ځان خلاص کړي او افغان شي چې په هغه صورت کې بیا مشکلات نشته او

ددې کار لپاره زه به په ډېره خوشحالتیا ورسره همکاري وکړم . تاسې چې دمسعود نه سقاو جوړوئ دانه هغه ته او نه موږ ته افتخار دی.
ټامسن خپله کتابچه او پنسل قلم راواخستل او وی لیکل چې صافی دغسې وایی . ماته یې وویل چې صافی ستا دغه خبرې به زما سره یاداشت وي . او وګورو چې ستا پیش ګویی څه نتیجه ورکوي ، یعنې ستا وینا به صحت شي که زموږ .
بیا مې ورته وویل چې تر اوسه لا وخت ډېر دی کله چې دکمونستانو دمصیبت نه خلاص شو ، بیا دا زموږ کار دی ، او ستاسو اویا دنورو مداخلو ته ضرورت نشته . او پر موږ کې سکه او ناسکه مه جوړوئ .
په هرحال ماته دسوالونو سره سره تشویش هم راپیدا شو ، چې دحکمتیار او مسعود اختلافات ولې ورځ په ورځ جدي کیږي ، او ولې مخصوصاً امریکاییان دحکمتیار مخالف او دمسعود طرفدار دي ؟ که خبره دجهاد وي خو موږ افغانان دهر چا جهاد پیژنو ، مناطق او قواوې راته دهرچا معلومې دي . دوی به په ډاګه ویل چې حکمتیار اخوانی ، مزاري دایراني تحریك دوستم دکمونیزم بقایا دوی زموږ مخالفین وي او اخرین مسعود ته چې دټولو سره مقابله کوي پخوا کلونو کې چې انګلیسانو دمسعود په هکله تبلیغات افراط او مبالغې ته کش کړې وو بی بې سي زما سره مصاحبه وکړه ، ماورته وویل چې ستاسو دغه افراطی تبلیغات دمسعود ، افغانانو او افغانستان لپاره ضرر دی .
تاسې داسې وانمود کړې ده چې که مسعود و مجاهدین او جهاد شته او که مسعود نه و نه جهاد شته او نه مجاهدین که پنجشیر و افغانستان شته او که نه نو افغانستان نشته ، حقیقت دادی چې دمسعود په شان په سلګونو قوماندانان لرواو پنجشیر زموږ یو اولسوالی ده ، تاسو مسعود ته دروسانو په مقابل کې پرستیژ ورکړېدی ، چې دا کار

مسعود ته ضرر کوی . ددي خبرو په سر داصل موضوع ته خبرنه وم چې قصه څه ده او چیرې ده ؟

داسوال ماته پیدا کیده چې امریکاییانو ولې په مسعود ډیر شدید ولاړ دي. بالاخره دامریکې په یو ستر مقام کې مې دافغاني بعضې سفارت خانو او ملل متحد نماینده راپوړونه ولیدل او لیکلی یې وو چې حکمتیار اخوانی دی او دادی او هغه دی او دپښتنو یګانه لیډر دی . ورور مسعود دتاجکو دیګانه لیډر دی چې دحکمتیار مخه یې نیولې ده . مخصوصاً دملل متحد نماینده په لیکنه مې خوا بده شوه ، بیا ما په مصاحبه او اخبار کې وویل : چې نه حکمتیار دپښتنو لیډر دی او نه مسعود یاربانی دتاجکو لیډر دی ، دوی یوازې دخپلو حزبونو مشران دي او ملي زعیمان نه دي خو کله چې دریچاردګاټ په نامه خپرونه راووته او ډیر مشهور انګلیسي ساندیګول دانګلیسانو دجاسوسی دستګاه ام ای سکس په ذریعه مسعود سی ای ای ته وسپاره او دخپل مارشال ټیټو په نامه یې یادکړ نو بیا خبره دشك او دتردید نه ووته چې داقومي او لساني اختلاف امریکاییانو ولې واچاوه ځرنګه یې واچاوه ، دچا په واسطه یې واچاوه هر څه معلوم شول . ددې لیکنې ټول مقصد او هدف دادی چې دنجیب له سقوط نه وروسته واقعات تصادفي نه بلکې ټول له پخوانه پلان شوی وو او افغانان دافغانانو پرضد استعمال شول او لاکیږي .

او که داسوال وشي چې دانوولې ؟ امریکاییانو دپښتون او تاجك سره څه لري ؟ ددوی دوستي او علایق له تاجکو سره له کومه شول او دپښتنو سره څه پدر کشي لري ؟

جواب چې هر څه وي خو حتمی خبره داده چې امریکاییانو مجاهد ملت جمع کمونستي جنګ دیده اردو جمع تیزه په تیزه توپ او راکټ

جمع فاتح اسلامي روحيه جمع اسلامي نظام دهضم او قبول توان يې نه درلود . گوندي هيوادونه خو په ځای پريږده . لنډه داچې داسلام په نامه فتح نشي هضمولای .

دروژې مبارکې مياشت داختر اوله ورځ مې دمانچستر نه په واشنګټن کې خپل ډير سبه او افغانانو ته صادق ملګرى دکليفورنيا کانګرسمن دينه رور هباکر سره خبرې وکړې هغه وويل زه کوشش کوم چې لکه دجهاد په کلونو کې موږ تاسك فورس درلود او دصلحې لپاره هم تاسك فورس جوړشي . ماورته وويل چې داخبره اوس ډير امريکاييان کوي اوس شك نشته چې امريکاييان بيا فعال شي وويل څرنګه ماوويل چې په افغانستان کې څه نه دي پاته . که مارشال ټيټو دافغانستان لپاره مفيد نشو نو ستاسو اهداف يې پوره کړل .

افغانستان ته يوازې نوم پاته دی غرنی وچې دشتې ، او څه اواره نفوس ا بس .

# پاکستان سره راتلونکي سیاسي تعلقات

زه له ورونو رباني او مسعود نه په درناوي سره خواهش کوم چې دپاکستان سره دسیاسي نژدی او دوروری تعلقاتو دتاسیس په هکله بیا او بیا فکر او تجدید نظر وکړي . او راتلونکي دولتي واکداران هم باید دوروری تعلقات وساتي . دافکر ولې راته پیدا شو ؟

جواب یې دادې : چې نن سبا خاصتا په یورپ او امریکې او نورو هیوادونو کې دپاکستان پر ضد تبلیغات له حده زیات شوي دي او د ۹۹ فیصد افغانانو اذهان دپاکستان مخالف شوي دي او دروسانو او هندوانو لپاره دکینې او نفرت پرځای خوشبیني ډیره شوې ده .

درباني طرفدارا فغانان وایي چې پاکستانیان زموږ په داخلي چارو کې مداخلې او لاسوهنې کوي ، وایي پاکستاني مقامات غواړي چې له

افغانستان څخه یو پاکستاني یو صوبه یا ولایت جوړ کړي ، وایي چې پاکستان په افغانستان باندې غواړي نظامي تجاوز وکړي ، دمهاجرینو شکایت او داسې نورې ډیرې خبرې .

داولې ؟ واقعاً پاکستانیان عادتاً لاس وهونکي دي ، دکابل رژیم دمخالفینو فعالیت په جنوبي افغانستان کې دي طبعاً که خارجي هیواد ته ګوته نیول کیږي هغه به پاکستان وي ، په دې پروپاګند کې دروسانو ، هندوانو ، او پخوانیو کمونستان لاس وهنې شته دي ، اصولاً او قاعدتاً دولت باید دټولو مشترکه دوست نه ځان وباسي او مستقل او موثره باقدرته دوستان ځانته پیدا کړي . یعنې داستاد رباني ملګري هم ستره برخه لري او پروپاګند کوي .

دراکټیونو په زور دیو مقام اشغال دعقل کل معنی نه ورکوي . داسې مسایل چې په هغې کې بالاخره ملت سوځې څه ناڅه مشوره ضروري ګڼل کیږي . له هرې خولې نه بې مسوولیته آواز پورته کول وران عواقب لري .

دتیرو سترو غلطیو په نتیجه کې چې تر اوسه یې سزا او مجازات وینو دعبرت پرځای په ډیرو بدو حالاتو کې دهغې تکرار په لویه ساده ګی وي .

دولتینو په خپل وخت کې ونه شوکړای چې دافغانانو مردمي روابط له پاکستان سره قطع کړي .

دپاکستان سره تعلقات باید دمحمد داود خان ، رباني او یلدور شخصي نظریاتو ولاړ نه وي باید مردمي او ولسي بیخ او ریښې ولري . په سیاسي بدو حالاتو کې دکابل منډوي او نخاس دپاکستان په غلو او غوبنو چلیده پاکستان زموږدمیوو لوی مارکیټ دی . پاکستان کې زموږ په زرهاوو شهیدانو او نورومړو قبرونه دی پاکستان کې په زرهاوو

خپلوي شوي دي .
هغه چاچې پنځه لس کاله زموږ عزت او ناموس ساتلی دی له هغې نه مخه گرځول او هغه چاچې پنځه لس کاله پر موږ ظلمونه او بیناموسي گانې کړیدي ي هغو ته مخه اړول ، منتها نامردي ده . دسپږې دلاسه پوستین ته اور ورکول داحمقانو کار دی داکار باید هغه وخت وشي چې محمد داود خان ، تره کی ، امین ببرك کارمل او نجیب بیرته برسر اقتدار شي .
تر هغې چې په دې ملت باندې دمجاهد نوم وی او سیاسي قدرت دمسلمانانو په لاس کې وي ، باید تیرې غلطۍ تکرار نه شي دپاکستان اویا دنوروگاونډیو هیوادونه دلاسوهنې شکایت په خپله ثابتوې چې موږ تر اوسه لا مستقر او باثباته نظام نه لرو ، داځکه چې مستقر او باثباته نظام دقلعې دیوال ته شباهت لري . که دیوال او چت و ، هیڅوك دقلعې په دیوال اوبنتلای نه شي او که دیوال نه و نو دملانصرالدین په کورهرڅوك تیریږي او راتیریږي .
پاکستانیان دخدای نه غواړي چې زموږ سره دوستانه اړیکې ولري ، ولې له بده مرغه داموږ وو چې دورور پرستۍ پر ځای مو هندوپرستي شروع کړې وه ، چې دهغې په نتیجه کې ستره بې اعتمادي منځ ته راغله .
زه تر اوسه لادې سوالونو ته جواب نه لرم :
- هغه چې دقائداعظم او ماهتما گاندي تر منځ لانجې وې او پاکستان داسلام . په نامه دهندوانو نه جلا کیده دافغانې وآکدارانو په خولو ولې پلستر و .
- کله چې دنړۍ ټولو ممالکو پاکستان په رسمیت وپیژانده ، ولې؟ افغانستان په رسمیت نه پیژانده ، هدف څه و او اسرار څه و؟ څه

نتیجه یې ترلاسه کړه ؟

- دهغې سفر برې چې یوسل اوشل زړې شورلټ لارۍ دخلیریشتو ساعتو نه وروسته دکابل نه جلال اباد ته ورسیدې او هلته دپیښور په بده بیره کې دامریکې ستر بیسونه وو ، هدف او مقصد څه و او څه نتیجه یې تر لاسه کړه ؟

په عمومي توګه په سیاسي سترو مسایلو کې دهیواد پوه او غښتلي کسان راټولیږی او په مسایلو خبرې اترې کوي .

افغانان چې په هر ځای کې راټولیږي زه حاضر یم دوی قانع کړم چې دپاکستان له خوا افغانستان ته خطر نشته او نشته زه بیا هم دانه وایم چې بعضې مقامات یا اشخاص به دانه غواړي زه داوایم چې که وغواړي نه یې شي کولای .

دغه مړی دپاکستان لهخولې نه غټه ده . ددې غذا دهضم توان دپاکستانیو په معده کې نشته ، تر شادهندوستان موجودیت په مخکې دسرحد او بلوچستان صوبې ، په جنوبي افغانستان کې دپښتنو ستر قومونه اوبیا دهندوکش او دفیروزکوه دوه دروازونه دپاکستانیانو تیریدل ناممکن دي . ددې اوازوخپرول پروپاګند او خود غرضي اهداف اوماقاصد دي . چې حقیقت نه لري . ما په هر ځای کې ویلي دي او بیا بیا یې‌وایم چې دپاکستان له خوا افغانستان ته خطر نشته . دخطر اتو اغاز به شمال وي او بیا له هغې نه وروسته چې هرڅه وشوه هغه به کیږي.

هر هیواد ځانته مرکزیت لري ، لکه دهندوستان هندوان ، دبنګله دیش بنګالیانو ، دپاکستان پنجابیان ، دافغانستان پښتانه ، دایران فارسي شیعه ګن او همداسې نور ، چې اقلیتونه دمرکزیت سټلایټ په شکل په یو مدار ګردش کوي . کله چې په مرکزیت کې نارامي راشي بیانو ،

لکه اوسنی افغانستان ډیر ډیرخطرات پیدا کیږي .
دپاکستان په نامطلوبه نیت اومقاصد پنجاب سوریزي چې هغه وخت بیا ستړلایټ هم خپله موازنه دلاسه ورکوي او پاکستان به په لوی لاس ځان په بلا اخته کړي . دپاکستان دبقا او ثبات دپاره باید پنجاب ثابت او ارامه وی .

دوم کار چې پاکستان وغواړي کولای شي هغه دافغانستان ضعیفه او ناتوانه کول . داځکه چې افغانان هیڅ نوع اقتصادي صنعتي بیس نه لري چې دهغې دمنځه وړلو په نتیجه په افغانانو مشکلات راشی . (نه صنعت شته نه زراعت ) دبابا ادم اولاده ده چې نوي دمځکی په سر پیدا شول . یوه بوجۍ اوړه ددوی په ژوند کې تغییر راولي .
پاکستانیان هم باید په دې پوه اوسي چې دافغان کورته یوه بوجۍ اوړه ورکړه نورغم نه لري . او بیا جنګ ته تیار دی او دقصور او انتقام په خاطر ډیر هیوادونه حاضر دي چې بوجۍ اوړه ورکړي .

ددولت ذمه واري خو لاپرېږده چې افغانان دوګړو او په انفرادي سطحه هم خراب شوي دي . په همدې خاطر باید فرد فرد افغان تلاشونه او هلې ځلې وکړي چې خپل ژوند ته رنګ او سامان ورکړي زموږ لپاره په هره ساحه کې لکه معارف ، زراعت ، تجارت ، صنعت او همداسې نورو شیانو کې دبل هر هیواد نه پاکستان مساعد دی . حتی دپاکستان نه دکولبې غوایي ته هم احتیاج یو . ددولت په چوکاټ کې هم تر هغې پورې چې موږ دخپلو غنمو او مهمو صناعتي او زراعتي پروژو دپاره غربیانو ته مراجعه کوو او یا ماشین الات په طیارو کې راغواړو او میاشتو انتظار باسو ، ښه به داوې چې په لسولارو په یوه ورځ کی پاکستان اعلی جنس ماشین په ارزانه قیمت دافغانستان مختلفو ولایاتو ته ورسوو . مخصوصاً رباني چې اوس هرځه ترینه ګډوډ شول او په هر

ونړ کي قربزي دروسانو او هندوانو سره دروابطو په خاطر دافغانستان حکومتونه دکفري حکومتونو په نامه يادول .

سياسي پوهه او دانش دخداى نعمت دى . انسان دهميشه لپاره څه وايي او څه پريږدي معنى داچي ځانته دسبا ورځي دګريز لاره ساتي . رباني داسې هر څه په وضاحت وليدل چي اوس دپرون ورځي په ګفتار او دنن ورځي په کردار په خپله حيران پاته دى چي څه يې ويل او څه يې وکړل

دوستي حو لاپه ځاى پريږده چي حتى دروسانو او دهندوانو دشناخت په خاطر ډير افغانان ترور شول ، زندانيان شول بدنامه شول، تکليفونه يې وليدل ، ډير کسان په شوروى کي دتعليم نه منکر وو ، داولي هر څه بدل شول ؟

زما دخپلو ملګرو خبري ډيري سني په زړه دي لکه داستاد رباني او يا عموماً دتندرو تنظيمونو مشران.

کله چي به يې په پاکستان کي ويل دافغانستان پخواني کافري رژيمونه زه به خجالت شوم چي خداىه دغه آسماني فرشتي له کومه راپيدا شوي ؟ اوبيايي په کابل کي ويل چي اوس نو هغه وختونه ولاړل چي څوك دچامال ته په بده سترګه وګوري اويا څوك دچا دروازه بي موجبه وټکوي اويا څوك دشپي دچاکورته ورننژدي شي . او همداسي په سلهاوو خبري .

څه يې وويل ، څه يې وکړل ، او څه کوي او څه به وکړي . حيران او خجالت يم په خپله يې چور او تاراج شروع کړ .

په کومو اخلاقو روسانو او هندوانو ته اجازه ورکوي چي دشهيدانو په ککرو وګرځي دجناب استاد رباني اولينه خبره داوه چي روسان بايد موږته دجنګ تاوان راکړي امااوس قريب دي چي د ، له لاسه

افغانان روسانو ته تاوان ورکړي .

زه له هرچا سره دښو سیاسي روابطو طرفداریم . خوله پاکستان سره دوستانه اړیکې ددواړو هیوادونو په ګټه دي . پاکستان ته دافغانستان له خوا او افغانستان ته دپاکستان له خوا خطرات نشته او باید نه وي او، داذهنیت باید ورك شي .

دملانصرالدین کور یو دیوال یوه دروازه او درې قفله درلودل دپاك افغان دوګروتر منځه درې دیواله نشته دولتونه دیوې دروازې او درې قفلو معنی لري .

# دفتحي نمانځنه

د ۱۹۹۵ ع کال دشنبې ورځ داپریل شپږمه ، یکشنبه اوومه، دوشنبه اتمه د ( وی ډې ) په نامه په ټوله اروپا کې جشنونه وو .

د ( وی ډې) یا وکټوري ان یورپ معنی پنځوس کاله پخوا دوهمه نړیواله جګړه ، د ۱۹٤٥ ع کال دمی دمیاشتې په اتمه نیټه دنازی المان په سقوط او په بې شرطه تسلیم پای ته ورسیده ، دهغې پنځوسمه کلیزه وه ، چې داروپا دفتحې په نامه ونمانځله شوه .

له ناروغۍ سره سره ، دنمانځنې ځای ، دلندن ډیر مشهور هایډ پارک ته روان شوم . دکور نه دوتلو په وخت کې څو پاکټونه پراته وو چې یو یې دافغانستان دسفارت نه رالیږل شوی و ، داستاد رباني له خوا داسلامي انقلاب د موفقیت د دریمې کلیزې دنمانځنې په مناسبت پیام و، په سرویس موټر کې سپورم او تر هغه ځایه مې دوه ځله پیام ولوست په هایډ پارک کې دخلکو دخوشحالتیا په لیدلو زما پر مخ اوښکې

راغلي . په همدې وخت کې له ما نه لازوړ یو انګلیس راته وویل چې دهغه وخت دوحشت په یاد دهر چا اوښکي راځي خو اوس خو شحه لري کوه ، داځکه چې هر جنګ دصلحې لپاره کیږي او موږ پنځوس کاله له صلحې نه برخورداره یو .

ماورته وویل : چې زه لکه ملاله خاله خپل مړي ته ژاړم ، پخوا کلونو کې زموږ دکلي دملالۍ ترور زوی مړشوی و ، دهر چا په غم اوښادۍ کې به یې خپل زوی دواده کالي او جامې مخ ته کیښودې او ژړل به یې.

له بده مرغه چې زموږ درباني جګړې دجګړو لپاره دي نه دسولې لپاره هغه راته بیا وویل چې زموږ جګه دفیلډ مارشال مونت ګمري په شان کسانو له خوا په مخ ولاړه ، خو صلح او سیاست ته مو ونستن چرچل درلود .

ستاسو دمونت ګمري په شان کسان ډیر وو ، خو چرچل نه لرئ . بیا یې راته وویل چې مسټر مسعود ته ووایه ماوویل چې مسعود نه استاد رباني دی ، ده بیا وویل هر څوك چې وي ورته ووایه چې دکار په میعاد سبه نوم په لاس نه راځي .

دچرچل شخصي کاغذونه په دریش ملیونه پونډو خرڅ شول . دخوش بختۍ چانس یو ځل دسړي دروازه ټکوي او له هغې نه باید اعظمي استفاده وشي . رباني دصلحې مسوول دی نه دجنګ .دنړۍ دهیوادونو په سلهاوو ملیونو وګړو کې یو نفر دهغه هیواد دمشر په صفت ټاکل کیږي ، دهمدې لپاره چې صلح او سعادت راولي ، نه جنګ او تباهي .

که ښه نوم په جګړه وي نو هټلر ښه نوم درلود . اوس ولې دجګړې او وحشت نه هر څوك کرکه او نفرت کوي .

دعکاسي کمره راسره نه وه او داحتیاط لپاره مې ددوه کسانو نه

خواهش وکړ چې زما عکس واخلي او بيايې زما په آدرس راوليږي زما دليکنې حقيقي صحنه تمثيل کړي .

دناروغتيا دشدت په خاطرکورته راستون شوم ، په لاره کې مې لاسونه ښوروڵ او له ځانه سره مې خبرې کولې ، شيخ چلي رانه جوړو په بستر کې پروت او دسه شنبې ورځ داپريل نهمې نيټې پورې مې په تلويزيون کې د ( وی ډي ) ټول پروګام وليد په سرکی می ستر انقلاب جوړشو، مدعي اومدعي عليه ، مجرم او قاضی . مدافع او معترض ټول په خپله زما سر و دليکنې په وخت دعينکو دورکيدو په خاطر په پوستين باران وشو .

په همدې وخت کې مې دپلار يوه خبره راپه ياده شوه . کله چې دمتعلمې په دوره کې له عسکري ليسې نه په عمومي رخصتۍ کې کورته ولاړم ، پلار راته وويل زويه موږ غريب خلك يو ، ته په کابل کې دسردار محمد داود خان او سردار محمد نعيم خان له زامنو سره سيالي او همچشمي مه کوه ، ستا سيالي او همچشمي بايد دغفور کاکا له زامنو سره وي ، ځکه چې زموږ سيالان دوی دي ، نه هغوی ، زموږ دولس حالت چې اوس په کې داخل شو ، داتم هنری له وخت سره چې تقريباً څلور سوه اتيا کاله کيږي فرق هم لري .

زه دهميشه لپاره کوشش کوم ، چې دهر چا عزت وساتم خو کله کله سړی زړه چاودی شي او دمجبوريت نه زياتی وکړي ، ولس ته په خطاب کې نادر ستنه بيان ولس ته توهين دی ، معنی داچې ولس يې په نظر [illegible] اوناپوهه راځي . ښه نويسنده ګي دمسايلو خوند زياتوی خو تور په سپينو هيڅکله نه بدليږي .

اوس دتکنالوژی‌له‌لاسه نړۍ تنګه شويده او حتی مااتحت ضمير شيان برملاکيږي . لکينه اوبيا دانسان دشخصيت نقاشي ده او اعتراف په

حقایقو انساني کرامت زیاتوي .

دخدای(ج) رسول (ص) فرمایي : «که درعیت مشر درعیت لپاره هوسا او دخیر ژوند تامین نه کړي او دمشرتوب دعوی ولري پر هغه مشر جنت حرام دی »

بیا دامقدس ذات وایي : چې الله‌پاك دیو سړي په هکله دري ځله زما دبخشش تقاضا رد کړه ځکه چې هغه یو مومن مسلمان وژلی و . اوبیا جناب فرمایي : « چې بدترین انسان هغه دی چې له خیر نه یې امید نه وي او دشر نه یې امان نه وي . فرمایي هرکله چې یو مسلمان پربل مسلمان توره وباسي دالله پاك ملایك په هغه لعنت وایي څو چې توره بیرته پوښ کړي . وایي مظلوم له نفرین څخه وډاریږی ، ولوکه هغه کافر وي او بیا مهرباني کوي وایي دخدای (ج) نه وډاریږی او خپل تر منځه مصالحه وکړئ .

داستاد په پیام کې ډیر شیان دتوجه وړ دي .

فرمایی : تجلیل سومین سالگرد پیروزي انقلاب اسلامي . ددې خبر ې معنی ماته داسې ښکاري چې کفر ولاړ ، اسلامي نظام مستقر شو . شپه او تیاره ولاړه ورځ او رڼایي راغله ، بدبختی ولاړه خوشبختي راغله قراره قراري ده خیر او خیریت دی .

د ( وی ډې ) په تجلیل کې دروسیې جمهور رئیس یالتسین وویل : روسانو دهټلر له زندانه‌څخه ځانونه خلاص کړل ، دستالین په زندان کې ولویدل .

پړانگ پسه دمرۍ او ستوني نه ونیوه او ورته یې وویل چې داډیر ښه کار وشو او پرتاخدای مهربانه شو ، چې زه په ښه وخت راغلم او که نه دالیوه ډیر ظالم او خطرناك و ، دپسه له سترگونه اوښکې راغلې او وی ویل چې زه خو تباه او نابود شوم زمالپاره څه ته یاځه لیوه .

بیا فرمایي : زموږ په امورو کې خارجیان مداخلې کوي ، زما په عقیده دغه خبره په خپله ثابتوي چې موږ مردمي او قانوني زعامت نه لرو .

عرض دادی چې په ټوله نړۍ کې هیوادونه یودبل په چارو کې لاسوهنې او مداخلې کوي او خپل هدف ته ځان رسوی خو زعامت دقلعې دیوال ته شباهت لري . که دیوال جگ او لوړو ځوك پرې نشي او بنتلای او که دیوال نه و ، بیانو دقلعې پر ځای دملانصرالدین کوریا دکوهستانیو بانډه جوړه شي . چې هر ځوك پرې تیر یږی او راتیریږی . مال دی وساته گاونډی غل مه نیسه .

وایي : شهرکابل یعني قلب سیاسي کشور . زه وایم چې شهر کابل میدان بزکشي کشور او اینده دی لاخدای خیر کړي .

فرمایي : ملتی که فداکاریهای افتخارافرینش جهان را از ستم اسارت وبرده گی وارهانید . که دلته خپله جمله پوره کړې او ووایې چې مگر مابدبخته کړ دابه سنه وي .

فرمایي : بعضیها چی مطلب یې دخارجیانو او داخلیانو نه دی مارا به تاجك ، پشتون ، ازبك وهزاره وغیره جدا میکنند . زما په نظر ددې بې ځایه او ناحقه تهمت نه دخلاصون ډیره سنه لاره داده چې وگروته څه ناڅه قناعت ورکړئ دمثال په توگه دې دگوندیو او اروپایي هیوادونو دافغاني سفارتخانو مامورینو او کارکوونکو لستونه نشر کړي ، څو ملت وگوري چې پښتانه ، تاجك ، ازبك او هزاره ، لکه دوروڼو په شان ځنگ ترځنگه ناست دي او کار کوي . حتی دمامورینو عمر دتحصیل درجه ، پخوانی مامورین او دکار تجربه دی هم ولیکي . څوکار داهل کار نظر او مفکوره ثابته شي وایي شپه که تیاره ده خو مهر به شمار دي . ددوی اسلامي او افغاني شعار به په سنه ثبوت ورسیږی ( اگر

حساب پاك است از محاسبه چی باك است ) زموږ په زرهاوو پوهاندان ، دوکتوران ، ډیپلوم انجنیران ،او ډپلوماتان دبیکارۍ له لاسه مریضان شول . او که څوك همکارۍ ته نه حاضریږي نو بیا داپه خپله ثابتوي چې موږ تر اوسه مردمي قانوني نظام نه لرو .

څه موده تر مخه مایو پخواني ملګري ته وویل چې که تاته دصدارت دمقام لپاره په فعلي شرایطو کې مراجعه وشي ته به موافقه وکړې ؟ هغه زما نه خفه شو او وی ویل چې تاماته توهین وکړ .

فرمایي : دقدرت دوږیو تږیو له لاسه ټولې بربادۍ او خرابکارۍ ، موږ دافغانستان دخاورې تمامیت ملي حاکمیت او سیاسي استقلال په خاطر ومنلې ، بیا په دې جمله کې مخصوصاً دکابل دښار له اوسیدونکو سره دهیواد دیوناجي په صفت همدردي اوزړه سوی ښکاره کوي . .

زما عرض ادی چې شپون رمې ته مسوولیت لري او دلیوانو نه په شکایت نه خلاصیږي . ښه به داوي چې ووای زه ستاسو په منځ کې وم او ټولې بدبختۍ تاسو ته زما په خاطر ورسیدې .

هغه خطراتو ته چې دوی ورته اشاره کړې ده داستاد په دوام هغه ریات شول او لازیاتیږي . په دوه رکعتو نفلو العیاذباالله چاته وحي نه راځي ، افغانستان ډیر لوی هیواد دی ، دکابل دښار په ویرانو چې ماسواله څلورو حروفو نور څه پاته نه دي مشکلات نه حل کیږي . یو ملا ، یو حبیب الله ، امان الله ته په بلا شول له منځه ولاړ ، زما دیو ډیر محترم وررور په صفت استاد ته مصلحت دادی ، چې هغه کار چې سبا یې ندامت کوې ، ښه داده چې په خپله استاد دیو انساني مردمي او قانوني نظام بنیادګذار په خپله شي .

هغه موده چې استاد خپله ځان ته په خپله ټاکلې وه ، دهغې دپوره کیدو او دجناب مستیري دمساعي له شروع سره داستاد مسوولیت ختم

شو اوس استاد دقدرت قابض او غاصب دی ، چې افغاني وګړو ته دخطاب وظیفه او مجبوریت نه لري .

وايي : کابل شهر باستاني و تاریخی ما . داخبره حقیقت ده چې په تیرو درې کلونو کې دکابل نه باستاني او تاریخي ښار جوړشو.

استاد وايي : که حتی رهایی قدرت ولو غیر قانونی بوده اگر حل مشکلات بود به تسلیمی آن حاضر شویم برای کی وچطور سپرده شود؟ چې هدف او مقصد يې دانور رهبران وي ، چې دی خپل ځان دنورو نه افضل بولي ، داد دوی خپل کار دی . افغان ولس ته ټول دیو باغ ګلان دي . او که مخاطب يې افغان وګړي وي ، نو جواب يې دادی ، چې افغان ولس له چا سره فزیکي او جسمي تضاد نه لري له راپیښنو شوو خطرناکو حالاتو نه په خیر سره دوتلو په خاطردکمپیوټر او یویشتمې پیړۍ دایجاباتو په نظر کې نیولو سره قدرت باید نړیوالو منل شویو انساني اصولو ته وسپارل شي .

دجناب مستیري موجودیت داستاد دپاره طلايي چانس دی چې په دې طریقه دقدرت په انتقال کې ددوی عزت او آبروهم خوندي ده .

داستاد په پیام کې اصلي هدف او مقصد دادی چې وايي هغه کار چې ملګروملتونو غوښته هغه موږ په خپله وکړ ، اوس دې دوی له موږ سره دهیواد په ودانولو کې مرستې وکړي . دقدرت دانتقال په هکله وايي چې دازموږ سیاسي اجندا ده ، چې په مساعدوخت کې به اجراشي یعنی قدرت نه پریږدي او ملګرو ورته دقدرت دپریښودو اجازه نه ده ورکړې .

په ډیر احترام ورته زما عرض دادی چې ددولت مشرتوب په سیاسي اصولو کې درې شرطه لري ، چې خاوره یاالراضی ، نفوس ، او حاکمیت دی ، په اوسني حالت کې استاد په ټول بدن کې په چپ غوږ حاکمیت

لري . نه يې نفوس شته نه اراضي او حاكميت.

زه دخداى په پاك نامه سوګند يادوم چې كه استاد رباني له محمود مستيري سره صادقانه همكاري وكړي په شپږو مياشتو كې ټول مشكلات حل كيدلاى شي او كه داكار نه كوي نو په موږ دې هم داحمقانو ګمان نه كوي او ځان دې نه تير باسي داځكه چې دصندلى په مقصد هر څوك سِه پوهيږي .

# درباني خلافت

دخلافت نوم خدای (ج) ناکرده کومه تحقیری معنی نه لري . داخبري لکه امیر او امارت خلیفه او خلافت دعربو دالرو موږ ته انتقال کړي دي.

لکه چې درباني په رسمي جریده کې جنرال محمد اسماعیل خان دامیر او هرات دامارت په نامه یاد شو دچالا ورته پام نه و چې ما په اول ځل په اخبار کې هیله وکړه چې تقلیدی نومونه په هیواد کې مه پیدا کوئ او دا د دالرو تر تاثیر لاندې مه راځئ . موږ عراب نه یو دچا دتاثیر لاندې نه وو او نه یو . افغاني افتخارات مو دبل هر چانه ښه دي . تاسو جنرال محمد اسماعیل خان دوالي یا دنتظیمه رئیس او یا نائب الحکومه په نامه یاد کړی ، خو له دې سره سره هم دوی خپل دې کار ته دوام ورکړ . کله چې امیر او امارت یاد شو دخلیفه او خلافت یادونه لازمي کیږي .

رباني ستمي او دمحمد طاهر بدخشي او دهغوی دیو تعداد بدخشاني تعلیمافته ملګری و . ستمي بنیاد د دربار وزیر علی محمد خانّ بدخشاني دکور روسي سنځې په رهنمایی دبدخشان په ولایت کې کیښودل شو . ددې حزب ریښې محدودې او روسی دي ملی بنیاد نه لري دظالم او مظلوم ستمي او ستمګر ملي مفهوم پکې نشته .

داحزب دپورتنۍ حلقې نه شروع شو او دبدخشان دولایت او څه ناڅه دتخار دولایت یوازې دځینو تاجکو تعلیمیافته طبقې نه ونه ووت او نور اقوام ستمیان نه لري .

ډیر کسان دشمال ( کوهدامن ، کوهستان او پنجشیر ) په ستمیانو کې حسابوي چې داډیره غلطه خبره او ستره اشتباه ده .

په عمومي توګه کوهدامن او کوهستان دبدخشان په شان تاجك نه دي او په دوی کې زبات شمیر صافیان ، کاکړ ، ناصر ، کوچیان او نور اقوام هم شته دي.

وزیر عبدالرحیم خان صافي په اول ځل هرات کې دبادشاهۍ اعلان کړی و . عبدالوهاب خان دصافیو دقوم مشر او خان و دچار یکارو په بایات کې خانان او سترې کورنۍ وې په کوهدامن کې خانان وو . دشمالي خلك ستمیت ځانته توهین او تحقیر ګڼي او دچاسره چې ملي غرور ژوندی وي ، داشان ټیټ نومونه په ځان نه زدي . په اردو کې اکثریت جنرالان او عالی رتبه افسران دشمالی وو . دستمیت لپاره موجبه اسباب نه وو . په دربار کې دمحمد رحیم خان پنجشیری او علي محمد خان بدخشاني نه خوك نژدې او باقدرته نه و . داحمد شاه مسعود کورنۍ اصلاً دپا دریا خانان دي ، داستاد خلیلي قصه ټوله فامیلی او شخصي ده ستم دسقاوی دوخت انقلاب زاده نه ده ، همغه وخت په ټول افغانستان کې دسقاوي او نادري په نامه داقوامو او قبایلو ترمنځه جګړې وې .

دجهاد په کلونو کې دشمالي ډېر لزمجاهدين له جمعيت سره وو . نن سبا دوی دپيسو او تبليغاتو په نتيجه کې دوطن داری او ستمي په لحاظ له مسعود سره همکار شوی دی .

دحبيب الله خان سقاو اخښی دبي بي سنګرې ورور چې ډېره موده له ما سره و ، ويل چې دهيواد قصه په تاجك او پښتون پورې هيڅ اړه نه درلودله . دهغه دوستان په پښتنو او شيعه ګانو دتاجکو نه ډېر وو . هغه به زيات وخت په چندولو کې تيراوه . بايد ووايم چې دحبيب الله پلار مجاهد و او دمنطقې سپين ږيری او غازيانو ته به يې په مشك کې اوبه رسولې نو ځکه ورته سقاو وايي .

ځنې کسان عبدالمجيد کلکانی دستمي په نامه يادوي چې داغلطه خبره ده . مجيد کلکانی ددوکتور محمودي نه وروسته دشعله جاويد مشر و . په دې حزب کې دنورو اقوامو په خاصه توګه دپښتنو منورينو هم عضويت درلود .

مجيد کلکانی او دهغه نژدې ملګری او همکار صوفی غلام حضرت دبغاوت په وخت کې پوره يو کال له ما سره دنژدې نه رابطه درلوده او اکثراً به زما په ځای کې اوسيدل نبه مې پيژانده . ( نه غواړم دموضوع نه خارج شم )

دکتور محمودي چې دببرك کارمل په دسيسه دعاجلې مريضې دليدلو په بهانه دکابل يك لنګه کوتل ته نژدې دپتلون په چرمي تسمه دمرګ په ګمان خفك او کوما شوی و سهار يې حجاری او نجاری فابريکې ته نژدې په خپل کور کې په شنو پټه وارو دخوب په جامو کې زياتو اوريدونکو ته په وينا کې وويل چې دا شعله جاويد ده چې زما په مرګ نه مړه کيږي . په کور کې يې شوروا پخه وه ديرش افغانی يې خپل زوی ته ورکړې چې دچه ډوډی راوړي . دغرمې له ډوډی نه

وروسته غونډه ختمه شوه . دوکتور محمودي جمهوري خواه و ، هیواد ته خاین نه و .

داخبره پرځای ده چې ووایم چې ببرك کارمل دمحمودي دپاره موظف جاسوس و او داهم دمحمودي دخپلې خولې وینا وه .

دببرك کارمل اصلي نوم غلام حسین دی چې پلار یې جنرال محمد حسین خان دځدرانو دستر مشر ببرك خان نوم پری کیښنود ، په دې امید چې دی به هم ملی زعیم شي خو له دې نه خبر نه و چې ملی خاین به شي . رباني خپل سټمي فعالیت داسلام په نامه ستر او اخفا کې دهیواد پرضد دمیاشتې درې سوه روپیو کلدره په معاش دپاکستان نه شروع کړ . چې جنرال نصیرالله خان بابر په مشرق اخبار کې په تفصیل سره لیکلي دي . داخبره کله چې دګل خانی په مانۍ کې دشپې په ډوډۍ درباني سره ناست وو ماورته په ډاګه وویل چې تاسو تخریب کاروئ اصلي مجاهدین موږ یو تاسو دسیاسی هدف ته رسیدو دپاره استعمال کیدلئ .

هغه وخت چې دروسي قواوو وتل اونظامي شکست په افغانستان کې یقیني او دامریکاییانو او حزب اسلامي حکمتیار تر منځه مخالفت علني شو دافغانستان په هکله دروسانو او امریکاییانو پالیسي داسلامي نظام دمخنیوي لپاره یوه شوه ،روسانو مسعود ته مستقیماً او راساً اکمالات شروع کړل .

دانګلیسانو جاسوسي شبکې M16 خپل ګوډاګی مسعود دامریکې جاسوسې شبکې CIA ته معرفی کړداهم هیوادوالو ته معلومه ده چې احمد شاه مسعود له کمونستان سره په ائتلاف دبینان سیوان په همکارۍ کابل ته داخل شو ، اردوبې له منځه یوړه او خاد یې تقویه کړ .

دډولو بدو نیتونو باوجود په هیواد کې دصلحې او امنیت په خاطر له حکمتیار نه پرته ټول افغانان دربانی ترڅنګه ودریدل . دنامقدس هدف په لرلو او دسیاسی عدم کفایت په نتیجه کې سیاسي تنظیمونه ترینه ولاړل ، جهادي قوماندانان په کابل کې دائتلافي اداري له خوا بې عزته شول او په ډیره مایوسۍ یې کابل ترك کړ . هغه قوتونه چې درباني دتخت دکیناستو سبب شو ي دوی لکه دوستم او وحدت هغوی هم دشمنان شول .

دده په خلافت کې دکابل ښار له منځه ولاړ او یوازې دنوم نور څه پاته نه دي دپنځوسو زرونه زیات کسان مړه شول . خلك دوباره مهاجر شول، چاته دسر چاته دمال او چاته دناموس تاوان ورسید . شخصي شتمنۍ او بیت المال چور او تاراج شو ، هغه ښار چې دنجیب په وخت کې دمدافعې کمربند ونه درلودل او آباد شویو کوڅه په کوڅه اسیر برمته او وران شو

دوخت په تیریدو هیواد ته نوي خطرونه راپیدا شول . په خارجي سیاست یې دوستان دشمنان او دشمنان دوستان کړل . که نیت صاف وي نو داسې مشکل نشته چې په سیاسي او یا نظامي لاره حل نشي او که څوك ، لکه رباني دولسوالۍ حاکمیت پر مملکت غواړي دا به یې نتیجه وي . درباني جنګیالي مخالفین ده ته مسوول دي خو دی د خلیفه مسلمین په صفت ولس ته مسوول دی مساجد شهیدان او قران شریفونه وسوځیدل . دیو نیم ملیونو شهیدانو جهادي حقوق او افتخارات یې پای مال کړل . ، دستمي ائتلافي اداري له لاسه اولس سوالګر شو ، چې دلاسونو په وړاندې کولو خپله حیا او افغاني غرور او استغنی له لاسه ورکوي ، اوس هم دغه اواره دکابل وران ښار ته افغانستان ښاروالی ته دولت او ښاروال ته ددولت ریس وایي او ستمي غیر ملي کمونستي غیر اسلامي اداره داسلامي نظام په نامه یادوي .

دادنړۍ یوازینۍ اداره ده چې قاچاق تشویقوي ، راه گیرانو ته ټکس ورکوي او رشوت په ورکولو ځان ساتي ، عجیب چې مخ په قوي کیدو و ، دقدرت دانتقال اعلان یې وکړ خو رباني چې چاړه یې په ستوني ده ، مرگی غواړي انتقال نه .

افغانستان مور ده چې زامن یې پښتانه ، تاجك ، ازبك او هزاره دي دمختلفو اقوامو او قبایلو تر منځه ځپلوی اوخپښی شوې وي او یو دبل سره گډ شوي وو ،خو ستمي کمونستي اداري کور په کور دشمنی جوړه کړه او صفونه یې جلا کړل .

ددې اداري لپاره لوی شرم دی چې پخواني زخمونه تازه کوي . په خارجي خود غرضه سیاست یې هیواد نه دبیطرفی پرځای دلوبو ډگر جوړ کړ،گاونډیان مداخلې خپل مشروع حق بولي داربانی و چې په اول ځل یې تر ټولو نه دمخه دروسانو نه دجنگ دتاوان تقاضا وکړه روسانو دتیرو جنایاتو له خجالته افغانانو ته په جگه سترگه نه کتل ، خو رباني دیو نیم ملیونو شهیدانو په پاکو وینو یې دروسانو سره دملي خیانت اسناد امضاکړل . دادربانی شعار و چې پخوا نیو دولتی مشرانو دوروور هیواد پاکستان اسلامي جمهوری پرځای هندوانو سره دوستي کوله ،خو که دپخوانیو تش په نامه دخولې دوستي وه رباني یو ځل بیا دافغاني طیارو جلو په لاس کې ورکړ،څو افغانان پرې قتل عام کړي . دایران اسلامي جمهوریت چې له موږ سره یې مرستې کړې وې او افغاني مهاجرینو ته یې ځای ورکړی،اوس یې افغان ولس ته شاکړه او ناپاکه اقلیت سره دوستان شول . نن سبا تلاش لري چې دحکمتیار ، دوستم او وحدت سره متحد شي . ( کاری نکند عاقل که باز ارد پشیمانی ) هغه دوسیه چې یې ددوی په باب دامریکې او غربي هیوادونو مقاماتو ورکړې وه په هغې کې اوس څه وایي ؟ څوك چې نن غواړي رباني سره

متحد شي ولې پرون دعجيب سره متحد نشول ، ( فرق دمخ په رېښتيانو وي که عمل ) کله چې يوه کوڅه پرمخ ولاړشي مستيرې ته جواب ورکړي چې نور تاته ضرورت نشته او کله چې په شاولاړ شي مستيرې ته په زاري شي .

دوی ته اسلام هدف نه دی دستمي هدف لپاره وسيله ده ، دافغانستان ملي اسلامي تاريخ يې دسقاو حبيب الله خان نه شروع کړ ددوی مقدس کتاب عيار خراسان دی ماورته په عام مجلس کې وويل چې په کتاب کې نه دي راغلی چې محمد ظاهر شاه دې دافغانستان بادشاه وي رباني دی نه وي خو ته بادشاهي وکړه هيواد جوړ کړه وطن مه خرابه وه . موږ وايو چې افغان شه او ته ځان کش کړې بدخشان ته . جنګ ته شوق مه کوه دسياست نه کار واخله او دافغانانو حمايت تر لاسه کړه . احمد شاه مسعود ته مې خو واره په ډاګه وويل چې دپنجشير دزمري پر ځای دافغانستان مشر او زعيم شه . که دټول پنجشير نه پلاستيك جوړشي افغانستان نشي پټولای . خو له بده مرغه ددوی هدف او مقصد زما له هدفه بيل و .

وايي داعليحضرت محمد نادر شاه شهيد قيادت دسقاو حبيب الله خان پر ضد دافغان ملت په پاخون کې پښتنو او تاجکو ته حواله ورکوي چې په زړو زخمونو مالګې اچول معنی ورکوي ددې نه بل ستر خيانت نشته چې خوك افغان ولس په پښتون ، تاجك ، ازبك او هزاره سره جلا کړي . ستميانو په اولو مياشتو کې دهزاره ګانو دپاخون او بغاوت پر ضد داميرعبدالرحمن خان عمليات غندل خو وايي هغه کارونه‌يې په هزاره ګانو او شيعه ګانو وکړل چې عبدالرحمن خان ورته مشفق او مهربان ښکاري .

ماله دوی سره صادقانه همکاري کوله په شخصي لحاظ ترډېره ممنون او

مشکور یم خو ددوی خرابو اعمالو له ملي خجالت او تاریخي مسوولیت سره مواجه کړم په همدې خاطر مې درې ډیرې مهمې وظیفې ( ددولت وزیر ، ددفاع وزیر معاون ، دمخصوص قواو قول اردو قوماندان ) داعتراض په شکل پریښودې . دوخت په تیریدو وحشت او بربریت مخ په زیاتیدو و . ولس نور هم اواره او سرگردان شو جنایت او خیانت ، راه گیري او غارت کسب او پیشه وگرځیده . دهیواد داسمان وریځې تیاره او مخ په زیاتیدو وې نا امیدي او مایوسي وه ، چې د پاك خدای (ج) په فضل دغرب دلورنه رڼا یې شوه او دطالبانو پاڅون راپیدا شو او په ډیره لږه موده کې داسلام او دافغانستان خادم ستر او محبوب زعیم ملا محمد عمر هوتك په مشرۍ اوقیادت یې دملي اسلامي غورځنگ شکل اختیار کړ.

# فرمان ریاست دولت اسلامی افغانستان

تاریخ : ۱۰/۵/۱۳۷۴

درباره تقرر محترم جنرال رحمت الله صافی
در پست دگرجنرال بحیث وزیر مشاور
در امور نظامی

تقرر محترم جنرال رحمت الله صافی در پست دگرجنرال بحیث وزیر مشاور مقام ریاست دولت اسلامی افغانستان در امور نظامی از تاریخ صدور فرمان منظور است.

پروفیسور برهان الدین ربانی
رئیس شورای رهبری و رئیس
دولت اسلامی افغانستان

IN THE NAME OF ALMIGHTY ALLAH

AFGHANews

Published monthly by Jami'at Islami Afghanistan

Vol 11, No 11 For the month ending Oct. 31, 1995

# Kabul defended

**The Taliban attack on Kabul and their capture of Rishkhor and Charasyab, south of the capital, were the main military event of the month October.**

After extensive preparation and giving a ultimatum to the state to take its forces out of Kabul, the Taliban launched a massive attack on Kabul from three directions on October 10.

The choice of date of the attack is important because on the same day in 1929, the tribes man from the south under Nadir Khan attacked Amir Habibullah Kalakani and defeated him.

# دطالبانو ظهور

دطالبانو دظهور تر عنوان لاندې غواړم په ډېره لنډه توګه ولیکم چې طالبان څوک دي ؛ له کومه راپیدا شول، ولې او دحه لپاره راپیدا شول ، حه یې وکړل او څه غواړي ؟ دطالبانو په هکله له امریکې غږ پښتو خپرونې سره په مرکه کې ددې پوښتنې په ځواب کې چې طالبان څوک دي ؟ ما ویل : طالبان افغانان دي ، مسلمانان دي ، پخواني مجاهدین او زموږ ورونه دي .

لکه چې طالبانو دهرات ښار ونیو او له بلې خوا تر لوګر پورې ورسیدل، دبي بي سي پښتو خپرونې ددې پوښتنې په ځواب کې چې دکابل اداره وایې چې طالبان پاکستاني ملیشه دي او پاکستان دطالبانو په نامه ځوزېږه هېواد کې دکرنیل امام په عشرۍ نظامي مداخله کوي ، ما ویل چې :د رباني اداره دې بله کوم بهانه او داسې تهمت وکړي چې دحجالت او اهانت ساحه یې پر دوی تمامه شي ددوی دغه خبره دافغان

ولس لپاره تحقير او اهانت دى .

دپخوانى شوروى اتحاد يولك پوځ او مارشالان دكابل دكمونستى حكومت اردو دهندوستان اوشرقي اروپا له مرستو سره سره دافغانانو دقربانيو په مقابل کې ماته وخوړه، يو کرنيل امام ځنګه کولاى شي چې دايران ، سرحدي پولې نه دجنوبي افغانستان تر لوګر په برق آسا حرکت فتح کړى . بيا هم که څوك وايي چې طالبان خداى ناکرده دپاکستان ګوډاګيان دي نو هغوى به دوه کاله او موزټول پنځه لس کاله او رباني او دهغه ملګري دپنځه ويشتو کالو راپديخوا ګوډاګيان دي .

په بل مابنام بيا دبي بي سي پښتو خپرونې په خبرونو کې وويل چې طالبانو دکابل دښار دنيولو وعده کړې وه ، خو موفق نشول يوازې چهار آسياب ته ورسيدل . طالبان نظامي ټريننګ نه لري ، او منظم نه دي ډير ژر به ددولت دمنظمو قواوو تر حملاتو او توپچي ضرباتو لاندې راشي متصل يې خپلو خبروته دوام ورکړ چې تيره مياشت زموږ يو انګليسي خبر نګار وويل : چې په کندهار کې دنجونو مکتبونه تړلي دي او ښځې په دفترونوکې کار نه کوي . ( ده ده کجاو درختها ده کجا ) ماته ډير تشويش راپيدا شو چې داشان خبرې دبي بي سي په شان ازاده او بيطرفه راډيو نه کوي نو دانوې قصه له کومه راپيدا شوه چې دتيرې مياشتې خبرې تکراروي معنى داچې خبرې تخريبي وې او بي بي سي هم په بله لاره روانه ده ددې جګړى په هکله دپيښور دوحدت پښتو ورځپاڼې دپوښتنې په جواب کې ما وويل : چې زه نظامي متخصص يم نظامي تاريخي معلومات هم لرم په مسلحانه جهاد کې قوماندان وم . تر اوسه هيڅ‌ځاې په يوه ورځ کې شل کيلو متره پيشرفت نه دى کړى هلته دنرګسو ګلان نه وو ،توپونه وو، مينونه وو، بمونه وو ، دې پرمختګ

درباني ملا ماته کړه . دمجونو تعليم او دبنځو دکار په هکله مې وویل چې هغه کسان چې داشان خبرې کوي هغوی دخوب او خيال ژوند کوي او په افغانستان کې له حقايقو نه خبر نه دي چې څه حال دی يوبې اعدام ته بيوه بل ترينه جامې غوښتلې ) طالبان دشهيدانو او زخميانو چاره وکړي که دمجونودمکتبونو ؟ دجنايتکارانو ، خاينانو ، قاتلانو او راګيرانو مخه ونيسي که دبنځو دفترونه خلاص کړي ؟

طالبان وخت ته ضرورت لري ، زه عقيده لرم چې ټول کارونه به په خپل وخت کې وشي .

دطالبانو ډېر سريع پرمختګ ته څنې حيران او څنې يې معجزه بولي. زما په عقيده افغان مسلمان او شريف ملت ثابته کړه چې که څوك دخدای (ج) او انسانيت په لاره سم ځي هغوی به دولس له حمايت نه برخوردار وي او د هر چاله څنګه چې ولس ودريږي هغه جريان به موفق وي او که درباني اداري په شان دوګړو حمايت او همکاري ورسره نه وي ، دکابل په مخروبه قلعه کې به حصار وي ، دامريکې غږ له پښتو څانګې سره دمرکې په ترڅ کې پوښتنه وکړه چې طالبان به دکابل په نيولو موفق شي اوکه نه ؟

ماورته وویل چې پخوا کلونو کې دانځري په نامه يو غل دسروبي په يوه قلعه کې ګرفتار شو دکابل دپوليسو قوماندان دين محمد خان دلاور په مشري يو کنډك پوليس ترينه چاپير وو . دراين متال هاوان ټولی هغه وخت تورن او وروسته بيا جنرال فرح الدين خان تر قوماندانی لاندې په موضع کې داخل و .

انځري دتسليميدو داخطار په ځواب کې وویل : لاس مو خلاص تر څو مې نيم نه تسليميږم زما په عقيده رباني بايد دانځری لوبې ونه کړي. افغانان دولت ته ضرورت لري تر کله به دغه حال وي . دڅو

کسانو په پهلواني کي داشريف ملت تباه او برباد شو.

بيايې پوښتنه وکړه چې که طالبان دکابل په نيولو موفق نشي څه تغييرات به راشي ؟

ما وويل چې ډير ستر تغيير به داوي چې انځرى به په قلعه کې بند او حصار پاته شي .

څو ورځې تر مخه دکندهار له سفر نه وروسته دپيښور د چهارسدى دناګمان دپله ترخنګه دسپند په غاړه دخو افغاني ملګرو سره دکبانو په رستوران کې غرمې ډوډى ته ناست وم . ملګرو په ډيره دلچسپى له مانه دکندهار دسفر جريان اوريده عبدالصمد خان افغان زلمى دحقوقو محصل دکابل دشوربازار اوسيدونکى چې اوس دپيښور ښار په تهکال کې دنان وايى شاګرد دى وويل : دطالبانو په هکله ماهم ډير ښه ښه شيان اوريدلي دي خو باور مې نه راځي ، خوله موبرمبو سوځېده اوس تروې پوکوو ، مولويان او استادان مو وليدل طالبان به يې لاڅه وى ؟ ده وويل : چې زه په دې وختونو کې دکابل نه راغلى يم او هرڅه مې له اول نه تر آخره وليدل ، رباني به ويلې : نور دظلم دور ختم شو ، اسلامي عدالت راغى هرڅوك به دترور او وحشت نه په امان او مصؤن وي . دهر چاسرمال او ناموس به تضمين وي . مخصوصاً دکابل دښار اوسيدونکي چې پنځه لس کاله دکمونستانو اوروسانو تراختناق او شکنجې لاندې وو . ډير خسته شوي دي نور به دشپې له خوا ددوى دکورونو دروازو ته څوك نه دريږي او بې دقانون له صلاحيته به باز داشت کيږي نه . دده اسلامي عدالت مووليد ،هغه کمونستو خپلواتو چې موږ ته به خجالت وو اوس به يې راته ويلې چې حالا ما دوچند تيز تر ميتراشيم ) دکابل جناياتو په نړۍ کې ريکارډ قايم کړ . ده وويل چې ما خو کتابچې له يادداشتونو نه ډکې کړې دي او غواړم چې کتاب

وليكم آيا رباني پوهيږي چې دده کارنامې به په راتلونکي تاريخ کې ثبت شي او که نه ؟

دده هغه موافقې او تعهدات چې يې له تنظيمونو او مخالفينو سره کړي دي پر ځای پريږدم دغونې لپاره به بوازې له دوستم سره تعلقات ووايم .

١- دکمونستانو او دوستم په قدرت کابل ته راعلل

٢- په کابل کې يې ددوستم له قواوو سره جګړه وکړه

٣- دوستم يې ددولت معاون مقر کړ او دهغه جنبش يې په رسميت وپيژنده

٤- بيايې له دوستم سره په جګړه شروع وکړه او دجهاد اعلان يې وکړ . په دوستم يې دکافر فتوی اعلان کړه .

٥ اوس شپه او ورځ تلاش ، عذر او زاري کوي چې دوستم ځانته جلب کړي او دهغه سره متحد شي .

ده وويل چې کله به ماپه مسخرو کې له مور سره دروغ وويل هغه به ويل چې زويه دروغ مه وايه چې عادت کيږي دې .

دطالبانو په هکله له ټولونه دمخه رباني اعلان وکړ چې طالبان زما متحد او همکار دي او څو ځله احمد شاه مسعود له طالبانو سره په ميدان ښار کې ملاقات وکړ خو کله چې طالبانو دحکمتيار نه چهار اسياب ونيوه او وحدت يې خلع سلاح کړ درباني قواوو دشانه ناګهانی نامردانه حمله وکړه او بيايې وويل چې طالبان دپاکستان مليشه دي اوس بيا تلاش کوي چې طالبانو سره ګوري . کله چې درباني قواوې يوه پوسته ونيسي بيا خپل هيئتونه نيويارك ته وليږي او وايي چې دملل متحد مداخلې ته نور ضرورت نشته موږ په اوضاع حاکم يو تاسو له موږ سره يوازې او يوازې اقتصادي مرستې وکړئ ، او کله چې يوه

پوسته له لاسه ورکړي محمود مستيري ته په عذر او زارۍ شي ، څو څو ځله يې هيټونه ننګرهارته راغلل او دقدرت دانتقال وعده يې وکړه بيا بيرته پښيمانه شي او ځان غلی ونيسي . تر ننه په نړيواله سطحه ددوی په مرام څوك نه پوهيږي .

که څوك غيرت لري په پاکستان کې دافغاني کونډو او يتيمانو حالت دژړا وړ دی زه حاضر يم چې ثابته کړم چې دربانې قوماندانانو بې نکاح ښځې تښتولې دي دمسجدونو او قبرونو پرځای کوروونه جوړ شوي دي . دچناق دلخواه ژوند تيروي .

چنګيز راغی او تير شو خو درباني داداري له جنايتونو نه داستان دمباله دار جوړ شوی دی دخلکو په سر مال او ناموس تجاوز عادی شکل اختيار کړی دی . داو دطالبانو دظهور موجبه اسباب چې ولیکل شول . دوی ددې لپاره پاڅون وکړ چې پورتنی جنايات په هيواد کې خاتمه پيدا کړي . طالبان له کومه را پيدا شول ؟ په دې هکله دستر قايد ملاعمر هوتك ډيرنژدې همکار وويل چې دنجيب له سقوط نه وروسته دطالبانو رهبر خپل ټوپك کيښود او په عوض يې کتاب واخيسته او مدرسې ته ولاړ .

يوه ورځ چې کتاب يې په لاس کې و له مدرسې نه کورته روان و يوه ښځه عارضي شوه چې ديوې پوستې له خوا پرې تجاوز شوی دی او زوی يې اوس هم په پوسته کې ساتل شوی دی . معنی داچې دپوستې له خوا په موږ او زوی جنايت شوی دی .

دښځې دشکايت نه وروسته ملا محمد عمر بيرته مدرسې ته وګرځيد او کتاب يې پريښود دجهاد ملګري يې راټول کړل او دحاجي بشر په مرسته يې ټوپك ترلاسه کړل او حقيقی انساني اسلامي جهاد يې بيا شروع کړ .

ددې پوستني په ځواب کې چې څه یې وکړل ؟ معقوله او قناعت بخشه ځواب دادی چې په خپله لوستونکی ولاړشي او دایران له سرحدي پولې نه دکابل ښار چهار اسیاب پورې وګرځي او هر څه په خپلو سترګو وګوري او دافغانستان له نورو مناطقو سره یې مقایسه کړي .

دافغانستان مظلوم ولس داسې حالت لیدلي چې باور یې نه راځي او ماته هم داخبره دمنلو وړنه وه ځکه چې ماحالات لیدلي وو ، ځنې نړیوالو هم داګمان نه کاوه په همدې خاطر دلته سفر لپاره کندهار ته ولاړم چې هر څه په خپله وګورم ، دسفر تګ راتګ ټول امکانات او سهولت راته محترم او زما دوست کرزی صاحب مهرباني وکړله عجیبه خوداده چې دشوي اکثریت غړي دتیر جهاد معیوبین دي .

دافغانستان دطالبانو ملي اسلامي غورځنګ ستر قاید ملا محمد عمر هوتك روحاني څیره په خپله ډیرو سوالونو ته جواب وایي . ددوی دموفقت ټول راز په دې کې نښتی چې ددوی اعمال په اسلام برابر دي او هغه کارونه کوي چې ولس یې ارمانجن دی .

ددوی تر کنترول لاندې مناطقو کې وسله او ټوپکیان نشته ، په لاروکې ځنځیرونه نشته مؤظفین چې تعداد یې هم ډیر کم دی چاته آزار نه ورکوي . دچاپیسې یا جنس نه اخلي زور او قدرتنمایي نشته ، قتل او غارت ، چور اوچپاول نشته دلمانځه په وخت کې ددکانونو او تجارتخانو دروازې خلاصې وې ، باډي ګارد بازي او ډب ډبې نشته . انسان ته روحي سکون او ارامش پیدا شي حتی موظفین هم وسله نه لري ما په دې ټول سفر کې یو کلاشنکوف ولیده او یوه تمانچه هم درهبر په کوټه کې،په دیوال کې بنده وه .

وایي لمر په دووګوتو نه پټیږي ، تبلیغات باید دروغ پټ کړي داسې نه چې دروغ تبلیغات پټ کړي راپه یاد شي چې پلار مې تره ته په غصه

وويل چې فلانی خان په دشمنۍ کولو نه ارزي مطلب دادی چې بعضې کسان ددشمنۍ او دوستۍ ارزښت نه لزي ، داځکه چې هغوي کله يو څه کله بل څه کيږي په دشمنۍ او دوستۍ نه پوهيږي .

اسلامي شعار ، کمونستي سازش ، افغانيت او ملي گرايي ، په پای کې ناخود آگاه ستميت يې بر ملا کړ . د ۱۹۹۵ ع کال داکتوبر اخر دافغان نيوز په انگليسي جريده کې ليکل شوي وو چې په کابل کې دطالبانو تعرض په اميرحبيب الله خان کلکاني په ۱۹۲۹ کال دنادر خان دتعرض له ورځې سره برابر و .

دوی پخپله دملا محمد عمر نه اعليحضرت شهيد محمد نادر خان دهيواد ناجي او رباني نه دسقاو زوی حبيب الله خان جوړ کړ .

زه له مسلمانانو او افغانانو نه ډير مايوسه وم مابه سوچ کاوه چې موږ ټول وخت په خودصفتۍ تير کړی او عملاً هيڅ صفت نه لرو .

بيا به مې دافکر کاوه چې داسلام مقدس دين په انسان فرض دی نه په حيوان ، موږ ددې پرځای چې اول انسان شو يوه مرحله پاته شوه راساً مسلمانان شوو. دډيرو ظاهري شکل دانسان دی خوباطن يې دحيوان درنده . خو کله چې مې دطالبانو تر کنترول لاندې مناطقو کې ددوی حالات وليدل ، بيا مطمين شوم چې که څوك وغواړی ښه افغان اومسلمان کيدلای شي .

زه په خپله دتحصيلاتو ،روشنفکری او دښځو حقوق ته په جامعه کې هيڅ تشويش نه لرم دجهان هيڅ قدرت ديوويشتمې پيړۍ دتکنالوژۍ دپيشرفت او سرعت مخه نشي نيولای څوك چې موټر استعمالوي مستری ته ضرورت لري ، څوك چې ساعت په لاس تړي ساعت ساز ته ضرورت لري څوك چې راډيو اوري راډيو ساز غواړي او څوك چې حج بيت الله ته ځي طيارې ته محتاج وي چې پيلوټ ، انجينر ، رادار چي،

مخابره چي او نورو مسلکي کسانو ته ضرورت وي ، دچا چې مور ناروغه شي دښځو ډاکتر غواړي ، خو دهر کر لپاره اول باید زمکه برابره شي . زموږ دتکاب بوي تعلیمیافته میرمنې چې ډیره محترمه ښځه ده دکابل په تلویزیون کې خبرونه ویل . دهغې بیچاره ګی په باب له فتواګانو او خودسری‌دلاسه دبیرېل پسه جوړ و .

کله به دتلویزیون نه منع شوه کله به وغوښتل شوه کله په عینکو، کله مخ پټی او کله به مخ لوڅې وه ، دکابل داداري اوسني کارونه ټول ساخته کي دي .

( دګیدړې انګوروته خوله نه رسیده ویل بې تروه دي ) حقیقي مقصد او مرام دقدرت په وخت کې معلومیږي ، دوی اوس په اوضاع حاکمیت نه لري او دهغې لپاره له هرې ممکنې وسیلې نه کار اخلي .

په هرحال دطالبانو داخلي او خارجي دښمنان فعاله او اکتیف دی دوستان بې چې افغان مسلمان مظلوم او بیچاره ولس دی غیر فعاله او پاسیف دي نو خدای دې خیر کړي او راتلونکی حالات به قسمت او تقدیر ته حواله کوو چې څه به ترینه جوړشي.طالبان هم باید متوجه اوسي چې هرڅه په‌طالب نه کیږي داموضوع ما په څلورو ورقو کې ستر مشر ملا محمد عمر اخند ته لیکلې وه‌چې علم په کتاب ، پیسې په تجارت او حکومت په سیاست کیږي، ،کار او اهل کار موضوع باید جدي او سي .

# دمعنوي ژوند بدلون

که دقادر او توانا خدای (ج) اراده وه، افغانستان به په خپله حال
پاته شي لاري او ښارونه به جوړ شي ، زراعتي او صنعتي ترقی به هم
وشي خو هغه څه چې له لاسه ولاړل او بیا نه راځي هغه دافغاني ټولنې
معنوي ارزښتونه وو چې غیر اخلاقي او مادي بڼه یې اختیار کړه .
دافغانانو په معنوي ژوند څو شیانو اثر واچاوه ، لکه څرنګه چې
علمای کرام فرمایي په هجرت کې اجر او ثواب دی . دا واقعیت لري
څکه چې هجرت ډیر سخت اوناګواره عواقب لري .
دهجرت آغاز د افغانانو لپاره ستره مایوسي او ناامیدي وه . افغانان
دهیواد حتی دکلي او کور له ژوند نه بهر بلد نه وو . که ډیر غریب هم
وو خوشحاله وو . خپل کور ، مالداري ، محکه او پټي پریښودل او له
نامعلومه سر نوشت سره مخامخ کیدل دهر افغان لپاره لومړی روحي

ضربه وه .

هغه افغانان چې غربي هيوادونو ته مهاجر شول ، مشران بيکاره ، او کشران مکتبونو ته ولاړل زلميان هم له مجبوريت نه دډالرو غلامان شول.

تر هغه وخته چې په هيواد کې دکمونستانو او روسانو پر ضد جهاد و ، مشرانو په ډير افتخار غونډې ، تظاهرات او رنګارنګ مبارزې کولې .

له دوې سره هم څه وو ، چې خپلو بچيانو ته يې په أستغنا او غرور سره تشريح او بيان کړي . کشرانو هم حه درلود ل چې په خپلو ښوونځيو کې دهيوادو په هکله خبرې وکړي او لکچرونه ورکړي .

دجهادى مشرانو تبليغات اوشعارونو دافغانانو په کورني ژوند کې بدلون راوړى و ، خو کله چې له عجيب نه قدرت دکمونستانو سره په ائتلاف جهادي مشرانو ته انتقال شو ، خوشحالي وه ، اخترو ، او جشنونه وو ، خو له بده مرغه دګبيني مياشت يې ډيره لنډه وه ، خوشحالي په غم او خندا په ژړا بدله شوه ټول ورته حيران شول چې څه يې ويلي او څه يې وکړل . په خارجي هيوادونو کې مشران دخپلو کشرانو له لاجوابه سوالونو سره مخامخ شول . په پاى کې دکورنيو دغرو د اذهانو جدايي راغله ، مشران درد او رنج احاطه کړل ، کشران غربي ژوند ته ورننه وتل . ددې منورې طبقې نابودي هيوادته ستره ضربه او صدمه شوه .

دافغاني ټولنې دمعنوي ژوند بدلون په پاکستان کې دمهاجرو دکمپونو او په کابل کې دکي جي بي دلاس له نيالګيو خادرنه وزيږيد .

په پاکستان کې دافغاني مهاجرينو ژونديو بام او ځو هواوو . ځينې په کلو او ښارونو کې پر ځاى شول دغه ډله په عمومي توګه کسبه کاران او دتنظيمونو ټيټ رتبه مامورين وو ، څه هم بنګله داران وو ، چې دتنظيمونو عالي رتبه کادرونه تشکيل کړى وو . چاته هم عبدالله

کمشنر په دوزخ کې جنت جوړ کړ .

دارستوکراسۍ او اشرافیت په ،آس بی جلبه سوار کاری وه ، له همدې ځای نه په لمونځونو کې دعاګانې بدلې شوې .

پخوا به یې ویل خدایه له کبیره او صغیره ګناهونو مو وساتې ، خدایه پر بدو کارونو لاس بری مه راکوې بدو کارونو ته مو سترګې ړندې کړې، پښې مو ماتې کړې ، وروروسته دعا شوه چې خدایه کبیره ګناه راته عفوه کړې ، دګناهونو نه دخود داری تقاضا دعفوې او بخشش په تقاضا بدله شوه . دمهاجرو قاطع اکثریت په کمپونو کې ژوند کاوه ، پلرونه په جهاد کې او ماشومانو به ټوله ورځ دلرګي په کلاشنکوف لوبې کولې . داخلي او خارجي تبلیغاتو لاتشویقول ، شرایط داسې وو چې دمور له غیر له مسجد ملا اود ښوونځي دمعلم له تربیې او تعلیم نه محروم پاته شول . ددوی ډیر اساسي او بنیادي مضمون یوازې او یواځې مړ کړه او مړ شه و ، او په دې هم مه پوهیږه چې څوك مړ کړه او دچا لپاره مړشه . دجهاد دتشویق لپاره یې دبیت المال په چور او تالان دغنیمت نوم کیښود .

که په سر کې مجبوریت و، په بر کې ضرورت و ، کمونستانو دخاد په فساد او ناپاکه حریم او مدرسه کې دکي جي بي په استادانو افغاني بچیان داسې وروزل چې دمور او دښځې مقام یې ورته یو کړ . چې ددوارو له مخلوط نه اخلاق کشه ، وجدان کشه ، معجون جوړ شول او دربانې دبقا لپاره وسیله شول .

پخوا به دولت ټکس او محصول اخیسته ، رباني پخپله ټکس او محصول ورکوی ، پخوا به دولت دغارتګری مخه نیوله ، درباني اداره پخپله غارت او چور کوې ، پخوا به دولت دقاچاقو مخه نیوله اوس درباني انتظامیه پخپله قاچاق کوې ، پخوا به دولت راه ګیرانو ته سزا

ورکوله اوس درباني اداره رشوت ورکوي ، دکابل اداره یوازینۍ اداره ده چې درشوت او پیسو په ورکولو تر اوسه باقي پاتې ده .

کلتوري شواهد ښیي چې افغانانو له اسلام نه مخکې هم یوه معنوي ټولنه درلوده چې داسلام مقدس دین یې په قاطع اکثریت سره قبول کړی و.

په ۱۹۷۳ کال دمحمد داود خان له کودتا نه مخکې په افغانانو کې مادیات یوازې داړتیا وو دلیرې کولووسیله وه او معنویاتو دژوند اساس تشکیلاوه ، له کور او کلی نه تر چوکۍ او مقام پورې هرچا په معنوي ژوند افتخار کاوه . دهر چا عزت او احترام په پاکۍ ، خودګډرۍ او میړانه کې و .

داخبره یوازې او یوازې په افغانانو کې رواج وه چې هندو هم پیسې لري او یا پیسې دلاس خیرې دی . دعالي محصیلاتو په وخت خارج کې چې به کله ما دافغانانو د دود او دستور قصې کولې ، ټول به په تعجب او حیران وو . له یوې خوا به مطمئن وو، چې زه دروغ نه وایم ، له بلې خوا به دوی باور نه کاوه .

دمثال په توګه ، مابه ویل چې زموږ دهیواد په اکثر ځایو کې پخې لارې او دلارو تر څنګه هوټلې او رستورانونه نشته ، خو دهغو پر ځای دکلي مسجد د هر ناپیژندلي میلمه لپاره هوټل او رستورانت دی .

دافغانانو په کورونو کې پاکه او ښه کوټه حجره یا مهمانخانه وي، ښې او پاکې بسترې دمیلمه لپاره ساتو . دوستان او ملګري دڅو ساعتو لیدنې ته راشي، خو دمحفل دخوږوالي او ګرموالي په خاطر دوه درې شپې پاته شي .

دضرورت په وخت کې که یو نفر له خپل ملګري نه څه کمې پیسې واخلي اخیستونکی یې نه ورکوي او ورکوونکی یې نه غواړي .

که ديو افغان په کور کې خوراکي مواد نه وي ، گاونډي ورسره دقرض په توگه مرسته کوي . مطلب دادی چې دفرد مشکل به په ټولنه کې حل کيده .

په معاشره کې آداب ، لکه په کليو ، لارو او کوڅو کې سلام ورکول ، کاکا ، ماما ويل ، کشر مشر پيژندل او يا هر سپين زيري حق درلود چې دځلميانو دبدو کارونه مخنيوی وکړي ، دښځو معنوي ارزش دنړۍ تر اسلامي او غير اسلامي هيوادونو ډير و . دښځو پر مخ به ډير جرمونه معافيدل او دهغې د عزت لپاره به يې ټيکری يا پوړنی هم ورکاوه . دسرې او پرهر چې له جوړيدونه وروسته به يې داغونه معلوميدل دنامرۍ اربتي داغه زخم نه اهميت ډير درلود ، جزايي هم سنگينه وه .

زموږ کليوالي او قبايلي دود او دستور او اولسي قانون له دولتي قانون نه دموکراتيك تطبيقی او مشرح و ، افغاني ټولنه دصنعتي ترقياتو له پلوه وروسته پاته وه ، خو له ښه او خوشحاله معنوي فردي او اجتماعي ژوند نه برخورداره وه ، دزوره ور په مقابل کې به دکمزوري حقوق دکلي او قبيلې په زور تامين وو . دعسکري مکلفيت دوه کلنه دوره دافغاني ځلميانو لپاره دتربيې او ادابو دزده کړې ښه مکتب و . دافغانانوله ولسي دود او دستور نه په زرہ پورې کتاب جوړيدلای شي ، خو زه به ټول مطلب په يوه جمله کې لنډ کړم هغه داچې ، دنړۍ پر مخ يوازې او يوازې افغانانو داسلام مقدس دين پر پنځو تهدابونو داسلام دفلسفې کلا جوړه کړې وه . چې ژوند يې له کيفيت نه ډك و .

زموږ په افغاني جامعه کې ښخوا داسلامي تهدابي فرايضو ادا کول او دهغو هدف الي مقصد دگناهونو مخنيوی و اوس ترې نه عفوه او بخشش غواړي .

دمثال په توگه : علمای کرام فرمایي چې لمونځ له پاك خدای (ج) سره ملاقات دی . پخوا به یو شخص دلمانځه نه مخکې انسان و ، په لمانځه کې انسان و ،او وروسته دلمانځه هم انسان و . اوس له لمانځه نه مخکې یوشی ، په لمانځه کې بل شی ، او وروسته بیا بل شی شي . په ظواهرو دعیوبو پرده پوشي کوي . قتل وکړي ، بې ناموسي وکړي ، چور او تالان وکړي ، بیا له خدای (ج) نه عفوه غواړي . اسلام پر انسان فرض دی ، نه پر حیوان . پخوا به اسلامي عزت په علم ، په تقوی و ، اوس په زور او تظاهر دی پخوا گفتار کم، عمل ډیر و اوس گفتار ډیر او عمل کم دی .

هغه چاچې ویلې داجهان فاني دی ، امتحان دی ، مسلمانانو ته سختی کفاروته عیش دی ، لکه څرنگه‌چې وایي ( دگیدړې انگوروته خوله نه رسیده ، ویل یې انگور تروه دي ) خو چې وخت راغی پاکستاني کلدرارو ، عربي ریالو او دامریکا ډالرو لیوني کړل . اوس خولې پټې خاموشې شوه ، دفاني جهان حریص په عیاشی کې باقي جهان فراموش شو.

یوه ورځ دپیښور ښار دیو اشنا په کور کې ناست وم ، درې څلور زلمیان هم را پیدا شول . یوه بل ته وویل ، چې کار او جنجال دې څرنگه شو ؟ هغه ورته وویل چې زما پر ځای بل څوك تعیین شوی دی. زما دفتر ته پولیس ولاړ دی او ددفتر کوټو ته یې قفل اچولی دی خو دفتر ساله ځانه سره کورته وړی دی ، کوټې خالي دي . دریم ملگري یې ویل چې ته وارخطا کیږه مه هغه پنځه لکه کلدارې رشوت ورکړی دی ته فوراًلس لکه کلدارې ورکړه دفتر به دې بیرته خلاص کړي . وحدت په اخبار کې اعلان وکړ، چې ته پرخپل ځای کې‌او دبل نفر مقرر قانوني نه دی ، چې افغاني تجاران خبر شي ، خبره داده چې په

لس لکه کلدارو قفل خلاصيږي ، داصلي معاملې به څه حال وي ؟

دپيښور په کبابيانو کې دافغانانو په اصطلاح ماما له خوربي نه شکايت کاوه او ډير په غصه و ، ويل يې چې زه داتيا زره ډالرو رشوت په ورکولو ديو چا واسطه شوم خوربی مې لحاظ ونه کړ او قسم يې وکړ چې که له يو لك شل زره ډالرونه کم وي امضاء نه کوم .

ديو لارۍ ډريور قصه کوله چې په وربښمين تنګي کې پوستې رانه څو لکه افغانۍ غوښتلې ماورته وويل چې تا دخپل مشر او رهبر عکس په ديوال بند کړی دی . هغه تاته دامنيت وظيفه درکړې ده او تاسې په خپله چور کوئ ، دپوستې نفر په غصه شو ماته يې دکلاشنکوف خوله راواړوله او خپل رهبر رته يې بد ګويي وکړه اووی ويل چې قصه لنډه کړه پيسې راوباسه زه دهمدې کار لپاره رهبر ته تللی يم . که دانه وي نو زما هم رهبر ته ضرورت نشته . که رهبران حق لري چې هيواد چور کړي زه هم حق لرم چې تا چورکړم .

پخوا به په يو قتل زندان و ، اوس په قتلونو کې دربار دئ ، پخوا به دظالم په سر قاضي و ، اوس دمظلوم په سر ظالم دی پخوا به عزت په پاکۍ و ، اوس په ناپاکۍ کې دی .

په همدې لحاظ دغه مضمون ليکم . يو خپلوان مې کوټې ته راغی ، وی ويل چې يو نفر دصوفی په نامه پخوا به يې په تکاب کې پوستکي اخيستل دپوستکو تاجر و اوس په پيښور کې تجارت کوی دهغه سبين زيري پلار په شمالی کې قوماندان انور ډنګر نيولی و او دهغه له زوی نه يې دولس زره لکه افغانۍ غوښتې دي او که پيسې ورنه کړي نو پلار به يې جنت ته وليږي . صوفي وويل چې ما څو نور قوماندانان وليدل ټولو جواب راکړ چې داد هغه کار دی . ددوی له خبرو نه داسې معلومه شوه چې يو له بل نه بدتر دی ، چې ( موټی دخروار

نمونه ده )

پخوا دزیرې دپرېسودلو معنی دسنتو ادا کول وو ، یعنې اصلي مقصد یې دسرور عالم «ص» دمبارکې خیرې تقلید او څه ناڅه داعمالو او ارشاداتو تعقیب و .

په افغاني ټولنه کې دښه سړیتوب سمبول ږیره وه . اوس دبعضو لپاره رواج دی چې دناجایزه اعمالو پرده پوشي وکړي . وایي ( چې ږیره پرېږدی هزار دي، دږیرې سړي په شمار دي ) پخوا به ږیرې والا مجرم ته هر چا ګوته نیوله، اوس ترینه ډاریږی ، معنی داچې دږیرې والا په مقابل کې له بې ږیرې نه حساسیت ډیر و .

دسپینو جامو معنی پاکي وه ، دپښتنو ځینو پیغلو ځوانو به دواده تر شپې پورې سپین ټیکری او پرتوګ یې نه کول دجهاد دهجرت کلونو بده اغیزه وړه ، اوس څرنګه چې خټکی له ختکي رنګ اخلي، ټولنه مادي شوه، تقوی او پرهیز ګاري په سرمایه داری بدله شوه ، سپینې جامې دسرمایه داری یونیفورم شوې دي ، د زور او طاقت سمبول دی .

هرڅوك تلاش کوي چې سرمایه دار شي مزور او قوت پیدا کړي دحلالو او حرامو توپیر نشته ، پخوا به دمحنت حلاله سرمایه زیبایي وه ، اوس بې محنته حرامه سرمایه ارایش دی .

هغه چاچې له انقلابونو نه په استفاده دافغانانو دوینو په بدله سرمایه ټوله کړې ده زامن یې دپلرونو دمرګي په انتظار شپې تیروي .

د ۱۹۹۵ کال دنومبر څلورمه دیو پیښوري دوست او ملګری دزوی په کوژدن کې دعوت وم ، دپیښور ښار حکومتي مشرانو هم ګډون درلود.
په محفل کې دخیال محمد پښتو فنکار او سندرغاړي په لیدلو ډیر خوشحاله شوم ، دامې له ځانه سره لوړه وکړه چې دخیال محمد دآواز داوریدو په خاطر به تر پایه پورې ناته شم . کله چې ساز شروع شو واز

دواره لوټ باران شو . پیښوریانو ددوو روپو کلدارونه تر سلو روپو کلداري پورې بادولې یو افغان زلمي دپنځوسو او زرو روپو کلدارونه ټیټ نه شو ، حیران شوم چې دې افغان دغه پټه خزانه،کله،په کوم ځای کې،ټرنګه موندلې وه ؟ داهغه روپۍ وې چې دافغانانو په وینو ټولې شوې وې ، شهیدانو دخدای او وطن په لاره کې سرونه ورکړل او کونډې یتیمان یې دپیښبور ښار په هر کوټ کې سوالګرۍ او ګدایي کوي او داځوانان پرې عیاشي کوي .

له عجیب نه دقدرت تر انتقال وروسته په هیواد کې دتباهۍ او بربادیو په هکله باید ووایو :

دا اظهرمن الشمس ده چې درباني ستمي او شعله یې اداره له کمونستانو سره په ائتلاف کابل ته داخل شوه . افغانان دجهاد دصف دملګرې په صفت په قاطع اکثریت دده تر ځنګ ودریدل ده هم ځان دخلیفه مسلمین په صفت اعلان کړ . دوخت په تیریدو دناپاکه نیت ، مجهول هویت ، سیاسي اود نظامي عدم کفایت نتیجه وه چې هیواد تباه او برباد او له ده نه یې ددولت درئیس په ځای دکابل ښاروال جوړکړ .

داقاعده ده چې مجرمین دولت ته مسوولیت لري او دولت ولس ته مسوول دی. هغه دولت چې دوګړو دسر ، مال او ناموس تضمین ونه کړي، هغه ته دولت نه وایي، دنړۍ دټولو قوانینو په بنا رباني دټولو بدبختیو مسوول دی . او دامسوولیت ده په خپله په غاړه اخیستی دی ځکه چې ځان ته ددولت رئیس وایي .

زه داخبره دګرانو لوستونکو بیطرفانه قضاوت ته پریږدم . چې که دولت مسوول نه وي ، نو څوک مسوول دی ؟ که دولت په سیاسي او نظامي امورو کې ناکامه وي څه باید وکړي ؟

# دملګرو ملتونو دسرمنشي په نامه ليك

جلالتمآب محترم دوکتور بتروس بتروس غالی دمتحده قومونو سکرتر جنرال صاحب السلام عليکم !

غزتمنده ! يوه ورځ مې دمتحده قومونو عساکر وليدل چې سربيانو دبرق او تيلفون پايو پورې تړلي او ولچك کړي وو ، بله ورځ مې بيا په تيلويزيون کې دبوسنيا ښځې وليدلې چې تاسو عالی جناب ته يې دخپلو ميړونو او زامنو دقاتل خطاب وکړ او تاسو ته يې اشاره وکړه چې دخپلو ميړونو او زامنو مړي او ژوندي له تاسو نه غواړي . خدای (ج) شاهد دی چې زه ستاسو لپاره ډېر متاثره شوم او دامې سوچ کاوه چې تاسو به ډېر زيات دروحي عذاب او فشار لاندې اوسئ . او دامې يقين درلوده چې هره ګړی به تاسو دتلويزيون په پرده کې ظاهرشئ او ديو ډېر شانداره پرس کنفرانس تر مخې به دخپل انساني کرامت او دمتحده

قومونو دسربراهیت دلور او عظیمه مقام دکیفیت او ماهیت دساتلو په خاطر به داعتراض په شکل په وظیفه کې دناکامۍ په خاطر استعفی وکړۍ او یو تعداد زیات ملګری به مو ستاسو لاره تعقیب کړي.

تاسو به ددې قربانۍ په ورکولو سره ستر قدرتونه مجبوره کړي چې په راتلونکې کې په دې موسسه کې مثبت تغییرات راولی او ددې موسسې اوامرو او فیصلو ته په نړیواله سطحه احترام وشي .

تاسو دجناب جان میجر دبریتانیا صدراعظم سره په داسې حال کې چې خوله له خندا ډکه وه ښکاره شوئ . داسې ښکاریدئ چې ټوله په چرچ کې دواده دمراسمو نه بهرشوئ ، خوشحاله یې او خاندئ .

ستاسو په لیدو سره دخنګ ملګري راته وویل چې دجناب دوکتور بتروس بتروس غالي ولې خوله له خندا ډکه ده او خاندي ماستا په لیدلو تعجب وکړ او حیران شوم او سوال راته پیدا شو چې دا ولې ؟

ددې سوال مې دوه جوابه راپیدا کړل . یو داچې دشورویانو دامپراطورۍ له سقوط سره نړیواله اشتباه وشوه او متحده قومونو خپل کیفیت له لاسه ورکړ ، نړۍ خپله موازنه له لاسه ورکړه اوس متحده قومونه مخصوصاً دامریکاییانو داستعمال وسیله او دلاس دسمال دی . بله خبره داده چې هغه پخواني اشخاص لکه اوتانت او همرشیو لد په شان کسان هم نشته . په دې هکله موږ افغانان دډیرو خلکو نه ښه پوهیږو او عملي مثال لرو .

په همدې موسسه کې پخوا زموږ دهیواد نماینده عبدالرحمان پژواک و او اوس جناب دوکتور عبدالغفور روان فرهادی دی . افغانان خو لاپریږده چې دافغانانو خره هم ددې دوو کسانو دمځکې او اسمان تفاوت باندې پوهیږي خرنګ چې دبوسنیا ښځو تاسو دخپلو میړونو او زامنو دقاتل په صفت نړۍ ته معرفي کړي په همدې شکل جناب دوکتور

روان فرهادي مخصوصاً دکابل دښار دوراني ، دپنځو سوزرونه زیاتو کابلیانو دقتل او دهیواد دبربادیو مسوول دی . دی دهغه چا چي دولت یې تابسو سره مشروعیت او قانونیت نه لري او ستاسو دنماینده هلې ځلې دوام لري ، نماینده دی . زما په عقیده جناب دوکتور عبدالغفور روان فرهاې ټولو افغانانو ، مسلمانانو ، دنړۍ تعلیمیافته ګانو دیپلوماتانو او سیاست مدارانو ته توهین او حقارت کړی دی . سیاست مدارانو لپاره دداسې کسانو دلاسه څه عزت او ابرو پاته نه ده،دی چې دخپلو افغاني خویندو او میند و په فریادونو ننګ نه کوي دبوسنیا دښځو په فریادونو به څه پروا ګیر وي .

جناب فرهادي افغانستان ته په هیڅ صورت کي دتلو او بیا دژوند خیالات نه لري خارجي تابعیت یې تر لاسه کړی دی له بده مرغه چې دنوم او م ماش په خاطر یې ګټلی ښه نوم له لاسه ورکې او په تاریخ کې به دتورې او ننګینې دورې دنماینده په صفت یادیږي . جناب فرهاې په دی کار ثابته کړه چې یوازې تحصیل او تعلیم دیوې جامعې لپاره کفایت نه کوې ، دهغې تر څنګ باید معنوي شخصیت هم وروزل شي .

پخوا کلونو کې داسې تصور کیده چې متحده قومونه جهاني پارلمان او حکومت دی او داخبره خوبې شکه عامه وه چې متحده قومونه دنړۍ پالیسی نظام دی چې دنړیوالې بې عدالتۍ مخنیوی کوې ، او په خپل وخت کې یې عملاً ثابته کړې وه دوجداني دولت رئیس دهر شخصي او یا هر دولت رئیس نه ارزش ډیر او احترام یې ضروري دی .

خداشناسي دخود شناسۍ نه سرچینه اخلي . زما ددې لیکنې دزیات اصرار هدف او مقصد دادی چې شاید ستاسو په ملګروکې دداسې کسانو تعداد ډیروي چې ستاسو عساکر اسیر او په پایو ولچك کیږي او دوی بې پروا ګرځي او عیش کوي . دې موسسې ته ټولې نړۍ دعزت په

سترګوکتل او احترام يې کاوه ، خو له بده مرغه اوس داحترام موجبه نه وينم . زه به تاته ديو انسان په صفت احترام کوم خو دمتحده قومونو دسکرتر جنرال په صفت تاخه کړي دي چې احترام دې وشي . کله چې يو صدام حسين بمبار کيږي دافکر راپيدا شي چې دنړۍ حکمران او اعلى قوماندان يې ، بيا چې دبوسنيا ښځې درته دقاتل خطاب کوي نو دمادرتر يزانه راته هم ډير عاجزه ښکارې .

موږ افغانان وايو چې هر څه وران شي مالګه به واچوې او که مالګه ورانه شي بيا به څه چاره وي ؟ دنړيوالې بې عدالتۍ مخنيوى به متحده قومونه کوي خو که متحده قومونه دبې عدالتۍ مرکز وګرځي بيا به چاته سترګې اوړي ؟ موږ افغانان يوه ټوکه لرو . وايي چې ديوې ښځې زوى له خپلې خاغې سره دخونې پر بام باندې ويده و او لورېې له زومه سره هم په همدې بام ويده وه .

ښځې پر زوى غږوکړ چې زويه هوا ګرمه ده دښځې نه دې لرې شه چې ناجوړه نه شې ، او بيا يې لور ته غږ وکړ چې هوا سړه ده ميړه ته دې نژدې شه چې ساړه به دې وشي او ناروغه به شې . زوى يې غږ وکړ چې داڅرنګه يو بام او دوه هوا . دصدام حسين او بوسنيا قصې ديو بام او دوه هوا ښه مثال ګيدلای شي .

ته زموږ دافغاني محترمو رهبرانو او مشرانو په شان مه کيږه چې هره څه دلاسه ورکوې خو چوکۍ نه ورکوې . ديوې چوکۍ لپاره يې مملکت خراب او برباد کړ . ستا او ستا دملګرو ستر خدمت او غټه قرباني داده چې داعتراض په شکل ديو عالي شانه پرس کنفرانس تر مخې دکار نه استعفى وکړې . زه يقين او اطمينان لرم چې په دې کار به ټوله نړۍ متوجه شي او په نتيجه کې به ستر تغييرات راشي . او تاته به ابدي ښه نوم پاته وي . په اوسني حالت کې څوك درته دامريکاييانو ګوډاګی وايي څوك مسخرې کوي او دبعضو کسانو دربانلې زړه سوځي . هيله او تمنا کوم چې دخپل ځان او بشر ته دخدمت په خاطر دې موسسې ته يو جهاني ټکان ورکړې چې نوى پرستيژ پيدا کړي .

# دافغانستان دمشکلاتو حل

دافغانستان دمشکلاترو حل باید په درو ساحو کې وڅېړل شي .

بین الافغاني ، بین المنطقه یي ، بین المللي

ډیر افغانان وایي چې خارجیان دې زموږ په داخلي چارو کې مداخلې نه کوي . معنی داچې موږ افغانان خپل مشکلات په خپله حل کولای شو .

زما په عقیده دا دقدر وړ افغانی احساسات دي ، چې عملي نه ښکاري، داځکه چې زموږ مشکلات ډیر پر مغ تللي دي . په موږ کې دلاینحو دحل کفایت نشته . موږ دمشکلاتو په تولید کې وسیله وو او اوس یې په حل کې داسې وسیله یو چې څښتن او بادار هم نه لرو او دبادار پر ځای باداران پیدا شول .

دلاینحو دپیدایش نه تر اوسه پورې چې دشلو کالونه زیات شول که موږ یو ډیر کوچنی کارهم په خپله کړی دی بیا به هم څه ناڅه امید واري وه

موز ته غټ او واړه کار ونه بل چاکړی دي . په خپله نه پوهیږو چې له کومه ځایه یې شروع کړو او په کومه لاره ولاړ شو .

بله خبره داداه چې زموږ گروپونه متعدد او هر یو ځانته علیحده مقاصد او اهداف لري او یو یې هم افغانستان دافغانانو لپاره نه غواړي .

دبعضو هدف چې پخوا قدرت طلبي وه اوس یې بقا طلبي ده . درباني اداري چې تر اوسه داقلیت نظام حاکمیت په ټول افغانستان غوښته ، له ملي کرکې سره سره اوس دسترې ناکامی سره مخامخ دی .

بیا هم ونډه غواړي دژوند بقایې دتوپ او راکټو سره لازم اوملزوم شوې ده .

دطالبانو ملي اسلامی غورځنگ چې دمقبوضه او تسلط لاندې مناطقو کې عمري عدالت راوستی دی او داولس په زړونو کې ځای لري دهغوی اکثریت دوستان پاستیف او دشمنان یې اکتیف دي او په مخ کې یې موانع جوړې شوې دي دوی شرعي اسلامي نظام غواړي چې دشمنان یې مخالف دي . دوستم که دافغانستان بادشاهی نه غواړي نو غټه ونډه او ستر سیاسي پرستیژ غواړي دازاد دموکراتیك نظام لپاره مبارزه کوي چې په همدې خاطر ترې نه نوی دوستم جوړ شو .

هزاره گان هم دسیاسي حقوقو دعوی کوي چې حد او معیار یې هم معلوم نه دی او قناعت یې هم اسانه نه ښکاري ، بعضې مړه سیاسي تنظیمونه هم دبرخو او ونډو په امید شپې تیروي دبیطرف طاقت توان یې دلاسه ورکړی دی بعضې په دا سوچ کې دي چې یوه ورځ گوندې به دریم غږ وشي چې هغه به دوی وي .

داحالت درباني داداري دسیاسي عدم کفایت نه پیدا شو او اشتي ناپذیره حالت ته ورسیده .

که خبره په همدې ځای لنډه کړم هغه داچې زموږ دمشکلاتو حل دبین

الافغاني مرحلې نه وتلی دی مړی ډیره غته او خولې ډیرې وړې دي .
بین المنطقه یې هلې ځلې خواسته یا ناخواسته داسې کارونه وشول چې دمشکلاتو دحل پر ځای یې زموږ مشکلات لازیات کړل . دګاونډیو درقابت او سیالۍ ډګر زموږ هیواد شو .
دایو انکار ناپذیره حقیقت دی چې سالم افغانستان دپاکستان لپاره او سالم پاکستان دافغانستان لپاره ضرورت دی . ددواړو هیوادونو بهبود او سعادت په نژدې دوستانه تعلقاتو کې خوندي دی ډیر افغانان پاکستانیو نه شاکي دي او فکر کوي چې عمداً یې دغه حالت راپیښ کړي دي .
زما په عقیده داکار به هغه وخت عمدی وی چې دوی خپل هیواد ته ګټه کړی وای هغه چاچې زموږ په خرابۍ کې خپله ګټه لیدله نتیجه دې خپله وګوري چې ځانته یې څه وکړل ماته داسې معلومیږي چې دوی ملي مرکزي پالیسي ساز سازمان نه لري ـ دهر چافکر بیل او خیال بیل دی . هر څوك دخپل سیاسي رقیب دپرځولو لپاره نوې پالیسۍ غوره کوي او دهر کارنه دریغ نه کوي که څه هم هغه د دوی دهیواد لپاره په ضرر وي . چې څه یې کرلي هغه ریبي .
زموږ ټول مسایل یوازې دپاکستانیو په لاس کې وو . روسانو او هندوانو افغانانو ته دخجالت مخ اړولی و . ایران په خپلو مشکلاتو اخته وو چې موږ ته یې شاه وه .
ددې فرصت نه په استفاده پاکستان ته ډیره ساده وه چې زموږ لانجې یې حل کړی وای دادافغانانو لپاره یوازینی میزبان هیواد و او هر څه یې دلاسه پوره وو .
زموږ کار یې ناتمامه پرځای پریښوده او کشمیر ته یې لاس اوږد کړ او بې وخته په لوی لاس یې غوصې ځانته وتورولې . افغانستان یې خیرې

سینه او زړه بهر دعملیاتو پر میز پریښود او دکشمیر سینه یې څیرې کړه دوه عملیاته په یو وخت یو جراح نشي کولای .

دبعضو انفرادي اعرابو او انفرادي پاکستانیو دنامطلوبه اعمالو په نتیجه کې نړیوال او په خاصه توګه د غربیانو خواشیني هم ترې نه پیدا شوه .

نه پوهیږم چې دپاکستان دوخت مشرانو په کوم منطق او ملحوظ احمد شاه مسعود په خپل هیواد کې دیو جمهور رئیس په سطحه پذیرایی کړی و . که اوس دوی هغه عمل غلطي او اشتباه بولي نو په سیاست کې اشتباه مرګ دی او عفوه نه لري . نن دافغانانو سیاسي میزباني دپاکستانیو له لاسه تللې ده په هغه اندازه چې دننه وو . په هماغه اندازه بهر شول .

دیو میزبان پرځای څو میزبانه پیدا شول .

له بلې خوا ایران او روسان په ټولو ساحو کې په خاصه توګه داتومي انرژۍ همکارۍ سره نژدې کړل . دافغانستان په هکله ایران نه غواړي چې سوله راشي څو داقتصادي ترانزیټي لارې مخه ونیسي او دوی ترینه استفاده وکړي . دافغانستان - پاکستان اوکشمیرحنیفي مذهب هم مخالفت کوي .

رباني دټولو ناکامیو سره سره په خارجي سیاست کې لاس بری شو . له رو سانو سره یې دیو نیم ملیونو شهیدانو په پاکو سینو بې شرمانه قرار دادونه امضا کړل .

دروس - ایران او هندوستان لپاره یې دښه راغلاست سرې قالینې واچولې . اوس افغانستان دروس ، ایران ، پاکستان او هندوستان درقابتونو او سیالیو دلوبو ډګر دی . عرب ښه دي چې استعمال شي خو ځانته خاص سیاست نه لري .

دافغانستان په هکله دهر چا مفاد اودلچسپي جلا ده اوس دوی نه غواړی چې خپل رقابتونه پریږدي او کوشش وکړي چې زموږ په هیواد کې صلح او امنیت راشي .

که په دې کار کې خیانت شوی وی نو فاعل یې رباني دی . داهم امکان لري چې گاونډیانو زموږ دهیواد داور دلمبو دتیتیدو احساس کړی وي او که وغواړئ چې اور حصار او مړ کړي او خدای دې وکړي چې داکار وکړي ځکه چې که نور هیڅ نه وي نو اقتصادي ستونزو سره همدا اوس مخامخ دی او سیاسي او ضاع ورځ په ورځ خرابیږی . زموږ په هیواد کې امنیت دټولو په گټه دی او دروسانو راتلونکی سیاست هم معقول ښکاري . .

بین المللی هلې ځلې :

دبین المللي هلو ځلو لاره ملل متحد دی . زما په عقیده اوس موږ دوه ملل متحده لرو . اوسنی ملل متحد چې خاص نماینده یې جناب محمود مستیري دی ، په هیڅ صورت په اوسني قدرت او صلاحیت زموږ درد ته دوا کیدلای نشي. دده دماموریت دشروع نه تر اوسه زموږ مشکلات لا څو چنده شول . دوهم ملل متحد دغربیانو او په خاصه توگه دامریکاییانو دی . ( لکه عراق او بوسنیا ) تر هغې چې دغه دوم ملل متحد ونه ښوریږي او فعاله نشي زموږ مشکلات نه حل کیږی .

دافغانستان دمشکلاتو حل یوازې او یوازې په دوهم ملل متحد کې خوندي دی اوبس .

خدای دې وکړې چې جناب مستیري ددوهم ملل متحد جدي حمایت تر لاسه کړی وي .

# اعلیحضرت دوخت ضرورت دی

ددې عنوان په لیدلو سره به ځنې افغانی ورونه او دوستان داسوچ وکړي چې زه د دوی په اصطلاح ظاهرشاهي یم . خو زه اقرار په لسان او تصدیق په قلب کوم چې ظاهرشاهي یا شخص پرست نه یم بلکې افغانستاني یم .

افغانستان مې مور ده او پښتون تاجك ازبك او هزاره مې ددې مقدسې مور بچیان دي . زه دتېرو ترخو تجاربو دنتایجو په استناد خپل ګران هیواد د فرد یا افرادو ته نه قرباني کوم لکه چې قربان شو . زه دتورو او ورو عینکو پرځای هیواد او هیوادوالو ته په طبعي سترګو او پراخه زاویه ګورم . فرد یا افراد دې دهیواد او هیواد والو نه قربان شي چې هغه هر څوك وي .

په دې کتاب کې ليکل شوي دي چې دمحمد داود خان له كودتا سره سم اعليحضرت محمد ظاهرشاه دخپلې استعفى په وسيله داثابته کړه چې قدرت طلب او ماجرا جونه دى .

داستعفى له اعلان وروسته داعليحضرت نوم له صحنې نه غايب او له نظره ولويد . څو له بده مرغه چې دوخت په تيريدو سره زموږ اعمالو هغه بيرته را ژوندى او صحنې ته راووست او موږ دهيواد له نابودۍ سره ځاى دنابودۍ په لور ولاړ و .

هغه وخت موراپه ياد شي چې په جلساتو کې مشرانو خبرو ته په لکونو افغانان دپاکستان له ډيرې گرمې هوا سره سره په جوش او خروش راټوليدل خو اوس هغه حالت خوب او خيال شو . څوك سپك وايي او څوك شا اړوي تښتي او نفرت كوي كه ځنې اوس هم خپل پخواني احساساتي فرمايشي شعارونه تكراروي چې محمد ظاهر شاه داو يا هغه و نو انصافاً دې دوى ووايي چې دوى څه ويل او څه يې وكړل ؟

( به هر چيز خنده به ريش بابه هم خنده ) خير دى كه څو توبه او راكتبه لرو خو هيواد دافغانانو دى چې دتباهى په لور روان دى او طبعي سياسي نقشه يې په خطر كې ده . زموږ په اوسنيو حالاتو څو كاله دمخه دپيشگويي كتابونه چاپ شوي دي او راتلونكې نقشه يې هم ترسيم كړې ده . داور لمبې دكنترول پرځاى اطراف او محيط ته خورې شوې دي . نژدې دى چې هغه تصوري نقشې تحقق پيدا كړي .

زموږ ورور احمد شاه مسعود چې مجبوريتونو او شرايطو هيواد ته په غصه كړى دى او دپنجشير نه يې دمرگ او ژوند په تصميم ډيره ستر او خطر ناكه او تباه كنه نظامي اډه او ډيپو جوړه كړې ده . دكليو نه درې پوړه دوسلو او مهماتو كانټينرونه ډير دي هيله او تمنا كوم چې دتاريخي گناه او مسووليت په خاطر لاره بدله كړي .

کاشکی دپنجشیر عقاب دهیواد زرکي ښکار کړی وای څو له بده مرغه چې عقاب په قفس کې بند او دزرکو پر ځای آزاده عقابونه راپیدا شول چې دافغانانو غوښې یې وخوړلې . راځئ موږ او تاسو دخپل ګران هیواد قضایایی په ګډه سره شریفانه او بې غرضه وڅیړو . ځینې افغاني وروڼه لا اوس هم دبین الافغاني ډیالوګ خوزې غیر عملې خبرې کوي خو دوی خبر نه دي چې دامرحله ولاړه او زړه شوه . پخوا که یو میزبان و اوس یې نوي میزبانان جلب او راپیدا کړل . که موږ غواړو میزبانان مو نه پریږدي .

له یوې خواخارجې مداخلې غندو، دبلې څوا خارجیانو ته دمداخلې اپیل کوو . مشران له ټول تلاش سره سره په خپله اعتراف کوي چې دقضایاو حل ددوی په وجود کې نه لیدل کیږي .

دګاونډیو دهمکارۍ او حسن نیت مرحله زموږ دبې کفایتۍ دلاسه په رقابت بدله شوه . اوس دوی هم په ګروپونو جلا او خپلې سیاسي لوبې زموږ په هیواد کې کوي .

که څوک په دافکر کې وي چې ګونډیان به زموږ دمشکلاتو په حل کې متفق او متحد شي دابه اشتباه وي . څو چې هند دپاکستان ، عرب دایران ، روس دامریکې سره متحد نشي موږ نه پریږدي .

زموږ دهیواد قضایا دګاونډیو په سیاسي اړیکو او روابطو کې نوی بدلون راپیدا کړ که څه هم دوی اوس پوه دي ، چې نارامه افغانستان ددوی دهیوادونو په ضرر دی څو پیدا شوي سیاسي ، اقتصادي او تجارتي رقابتونه ورته اجازه نه ورکوي چې مشکلات دافغانانو په ګټه حل کړي . دپخواني شوروی اتحاد دامپراطورۍ دسقوط نه وروسته په نړۍ کې موږ اوس دوه ملل متحده لرو .

دغه ملل متحد چې خاص استازی جناب محمود مستیری دې په خپله

وايي چې نه زرلري او نه زور ، دی دبطروس غالي دشخصي ملګری په صفت دمصروفيت په خاطر استخدام شوی دی تر اوسه يې يو قدم مثبت نه دی اخيستی . دده په هر وارتګ او راتګ زموږمشکلات لازياتيږي .
په سياسي اصولو کې اتيا په سلو کې مساوي درقيبو ډلو تر منځه محرمانه په توافق رسيږي او بيا هغه افشا شي . مستيري دشپې درباني نه لست واخيسته او سبايې نشر کړ چې ټولو اړ خونو رد او افغانان يې هم تعجب کړل .
زه دجناب مستيري مصروفيت په هکله خوشبين او اميد وار نه يم . دده له راتګ نه يوازې پاکستان زموږ ميزبان و اوس دده له برکته روس، ايران او هندوستان هم نوی ميزبانان شول . ( چې قصابان زيات شي ځاروی مرداريږي )
دوم ملل متحد دغربيانو او په خاصه توګه دامريکاييانو دعراق او بوسنيا په شان ملل متحد دی . چې هغه زموږ لپاره نه دی .
زموږ په وينو ددوی مطالب پوره او آرزوګانې سر ته ورسيدلې اوس څه خاصه دلچسپي نه لري حتی چې زموږ نوم په خوله نه اخلي او نه يې کوم اخبار کې ليکي .
نور څه پاته نه دي چې هغه تحليل او دځېل هيواد دمشکلاتو دحل فال نيك ونيسو.
داحمد شاه مسعود دقواوو په موجوديت کې درباني تګ به يوازې ځيرې بدلې کړي او مشکلات به دحل پر ځای لا زيات شي . بل داسې افغاني شخصيت چې دهغې مقناطيسي کشش به نور پر ځان راټول کړي نشته دی اوياماته نه ښکاري .
اوس نو افغانان اختيار لري ووايي چې اعليحضرت محمد ظاهر شاه داو اړ كه هغه و اويا داعليحضرت دروحانيت نه استفاده وکړي او هغه

دیو ضرورت په خاطر ددې پر ځای چې سبا ناوخته وي بیا ندامت او پیښیماني څه ګټه نه لري .

راځئ چې له خپل پخواني دوکتور نه دزوړ مریض دمعالجې لپاره استفاده وکړو ، موقع ورکړو چې د مقدسې مور ټوټه ټوټه اندام راته بیرته یو ځای کړي . بله عملي لاره او چاره نه لرو .

که پخوا مو دهغه نه دهیواد دسمبول په صفت تقاضا کوله اوس به دهغې نه هم تیر شو . زه دانه وایم چې هغه به داسې جادو ولري چې هر څه به په یوه ورځ بدل کړي خو داهم یقین لرم چې که زموږ نیتونه صفا وي دجناب بروجردی او جناب مستیری نه به مثبت وي او څه نا څه ویني به په تودو اوبو پاکې شي .

کاشکې ددې خاندان اوبا دمحمدزي دقوم بل داسې څوك وای چې په افغاني ټولنه کې یې خپل موقف او موجودیت ثابت ساتلی وای .

محمدزیان چې دافغانستان ستر قوم و او د تاریخ په اوږدو کې یې دقدر وړ قربانۍ ورکړې دي او اوسنی افغانستان ددوی دخدماتو نتیجه او محصول دی ، میلمانه وو چې رخصت شول دقوم په سطحه یې درك نه شته .

# یادونه

گرانو لوستونکو ، خوېندو ، وروڼو ارجمندو افغانانو السلام علیکم !

که څه هم ما ددې کتاب په لیک کې دخپلې ذاتي تربیې او طبعیت سره سم ډیر کوشش کړی دی چې دقلم عفت اوملي اسلامي ادب مراعت کړم خو بیا هم څه ناڅه وچې او ترخې خبرې به هم پیداشي . هغه داچې زه دمرکز نه لېپه غزنی او وروسته پاته منطقه کې پیداشوي یم او ټول عمر په عسکري مکاتبو کې په زده کړه او په عسکري قطعاتو کې صاحب منصب وم .

بله مهمه خبره داچې که نور څوك دا حق ځانته ورکوي چې زما او ستا ښکلی هیواد راته وران او گران هیواد وال مو آواره ، تباه او برباد کړي او چور او چپاول ، قتل او غارت وکړي نو زه او ته هم دمظلومانو په ځاینده گۍ حق لرو چې ددوی دژړا او فریادونو اواز اوچت کړو قلم نشي کولای چې ظالم ته ظالم قاتل ته قاتل ، جاني او خاین ته جاني او خاین

ونه لیکي .

ظالم حق لری چې دظالم په نامه یاد شي .

پرون مو په نورو خندلې نن دنورو دخندایو ، پرون مو افتخار کاوه نن خجالت یاسو ، پرون مو کور او وطن درلود نن بې کوره اوبې وطنه یو ، داولې از تر کله ؟ راتلونکی نسل باید دنن ورځې په حوادسو پوه وي لیکوال باید دحقایقو ولیکنې همت او لوستونکی باید دحقایقو دلوستلو او اوریدلو حوصله او تحمل ولري . دملګرو توجه اومصلحت داو چې دهیواد پخواني عالیرتبه سیاست پوهان او روشنفکران په دې کتاب خپل نظر ولیکي خو ماغوښتل چې دعادي افغان او عادي افغاني چې دهیواد په تراژیدی جریاناتو کې داخل وي نظر واخلم خو دامنیتي ملحوظاتو په خاطر صرف نظر وشو .

په هرحال که ښه وي که بد دا تاسو او داموکتاب .

داسنادو اومعلوماتو په استناد ماغوښتل چې کتاب په انګلیسي ژبه ولیکم څو غربیان او په خاصه توګه امریکاییان پوه شي ، چې موږ پوهیږو خو ناوخته او ظلم منو له مجبوریته ، خو زما انګلیسي په هغه سطحه نه ده چې کتاب پرې ولیکم ، په پیښور کې مې ډیر تلاش وکړ چې زما په زړه دانګلیسي ژبې پوه کسان پیدا کړم خو موفق نشوم ، زوی مې روح الله هم راسره ټینګه وعده کړې وه چې ماسره به دانګلیسي ژبې دکتاب په لیکنه کې مرسته وکړي خو څه دمصروفیت بهانه او څه هم ددې زمانې دزامنو بې پروایی ، تر اوسه داکار ونه شو ، زما په عقیده عسکري ژوند او دجهاد دزیاتو کلونو مصروفیت چې دکور او په خاصه توګه دزوی نه لرې او جلا وم ددې کار اصلي سبب دی. شرایطو رانه دشرم په مقابل کې زما حساسیت لږ کړی دی یو ځل بیا به ترې نه خواهش وکړم چې دانګلیسي کتاب په لیکنه کې راسره

مرسته وکړي . داکتاب به دليکوالی په لحاظ ډيرې خلاوې او نواقص ولري خو رنګ يې څه کړې خوند يې وګوره . هيله لرم چې ستاسو قدرمنه وطنوالو دلوستلو ارزښت ولري او که دانه وي نو ستاسو دوخت په ضياع به خفه او متاثر شم .

دطنداران مې پيژنی چې نه دانشمند يم نه ليکوال دزړه احساس مې رقاص وي خو پښې مې نه چليږي . روسان يو متل لری : ( دتفتيش او دچرګ ترمنځ څه فرق وي ؟ ، تفتيش په ښو کې بد لټوي او چرګ په بدو کې ښه لټوي ) خدای (ج) دې وکړي چې د نقدونو دهاران پرځای رهنمايی او تشويق شم .

دقلم جهاد دمسلحانه جهاد نه دوامدار او مقدس وي . که دقلم په جهاد کې ماهر نشانزن نه يم خو وسله به راسره ساتم او ډزې به دوام لري .

په پاړسي ژبه مې همدا اوس دکتاب په ليکلو پيل کړی دی که مالي امکانات راته پيدا شول هغه به هم چاپ او وطنوالو ته تقديم شي .

په فارسي کتاب کې به نقابونه لرې او مخونه لوڅ شي . جنايات به رسوا او برملا شي . هغه څوک چې دجناياتو په فعل او عمل نه شرميږي موږ او تاسو يې په ليکلو اولوستلو هم نه شرميږو . دکرکې اونفرت نه ډکې تراژيدي کيسې به ډيرې وي .

ورروسته له هغې نه چې هدف ته ورسيږم که چا په تور لست کې داخل او سور خط يې راته کش کړ او بيايې دجنت بلبله رانه جوړه کړه بيا يې غم او تشويش نشته .

# لنډه پېژندنه

جنرال رحمت الله صافی دشهید محمد غوث خان زوی تګاب، متولد، دحربي ښوونځي اوبیا پیاده مسلك دحربی پوهنتون نه ددوهم بریدمن په رتبه فارغ . عالي تحصیلات : شوروی . امریکا . انګلستان دغرنیو او پراشوټي کوماندو قواو بنیان ګذار او قوماندان .

دمحمد داود خان په کودتا کې زنداني بیا فراري او انګلستان ته مهاجر . په څلورو ولایاتو ( کنړ ، ننګرهار، پکتیا او پکتیکا ) کې دملي اسلامي محاذ عمومي جهادي قوماندان دمجاهدینو دفرقې او تعلیمي غنډ قوماندان ، وروسته بیا دقوماندانانوسرتاسري شوری دعالي کمسیون غړی . دجهاد په ګټه نظامي او سیاسي موثر فعالیت ، په خارج کې دجهاد دزخمیانو دمعالجې او تداوی په هکله موثر تلاش دمجاهدینو لوژستیکي اکمالاتو کې مساعي او کوښښ. دجهاد په نفع راډیویي او اخباري تبلیغات .

دنجیب له سقوط نه وروسته دمصالحې هئیت ، دربانی په اداره کې درې وظیفې ددولت وزیر ، ددفاع وزارت معاون ، دديساتي قول اردو قوماندان داعتراض په شکل ترك او دجنګ دخاتمې او په هیواد کې دصلح او امنیت دتامین په خاطر سیاسي مبارزه .

پلار مې دقوم مشر اوسپین ږیری ، دسلطنت په وخت کې دشوری وکیل ، دکمونستانو په وخت کې مجاهد ، په څوارلسم دروژې مبارکې میاشتې ۱۹۸٤ کې دروسانو له خوا په مسلحانه برخورد کې شهید شو.

دغه کتاب دهغه دپاك روح داحترام او یاد بود لپاره تقدیموم .

# [label]ow Afghanistan is ruined ?



By

General Rehmatullah Safi

1996